دپښتو ټولنې دخپرو نو پرله پسې لمبر : (۱۹۵)

# دخوشحال

# رباعیات




پښتو ټولنه

دادبیاتو څانګه

زمری ۱۳۴۹ ش دچاپ شمیر : (۱۵۰۰)



دتورې اؤ قلم خاوند خوشحال خټک

# بسم الله الرحمن الرحيم

## (۱)

اولاد چه ښه شي راحت دزړه کا
او لاد چه بد شي ښه مورپلار پړه کا
او لاد چه ښه شي بد مور پلارښه کا
او لاد چه بد شي رنځور دي زړه کا

* * *

احمق چه و پوښتي خپل زړه زبا ن کا
په ويل گډ شي ويل شان شان کا
هرڅه په زړه کښې څه نيك وبدلري
هغه به واړه درته بيا ن کا

* * *

بې له بند گۍ د ي بنده نور هيڅ نه کا
په لږ په ډير دي له څښتن پېچ نه کا
که يې و مرگ ته په قهر کاږي
بنده‌دي تېښته دڅښتن‌له قلبچ (۱)نه کا

* * *

پا يښت يې لنډوی چه څوك لبا س کا
مخ به يې تور شي چه کوز او پاس‌کا
په شان شان خولې دی شان شا نځبرې
نا دان چه وايی هوښيار قيا س کا

---

(۱) قلبچ = توره .

پلـو کـه ښکلـي لـه مخه ليـر ي کـا
را تـــه پـه مهر خنـدا خبـر ي کـــا
مـابـــه تـوانـگر کـا د لـعلـــو درو
هـــم به را تو يې پر خو لې شکر ي کـا

* * *

پـه باغ کښې خلك په مېو ه شخوند کا
په خوله کښــې هره مــېوه خپل‌خوندکا
ترخه هــم ښه دی په دا جـهـا ن کښې
د خو ږو قــدر تر خــه څرگند کــا (۱)

* * *

په گل چــه هو مــره مينــه بلبل کـــا
سيـل دبلبلـو باند ي غــلغـل کـــــا
دښــا يستــه ؤ عا شــقا ن ډېـر د ی
عــا لـــم بـــه ولی احـداد دگـل کـــا

* * *

توره چـــه بيا مو می غـا زی غـزا کا
تـو ر ه چـه نـه و ی غـزا نه شـا کا
تو فيـق لـه تا نه تقـوا لـه مـا نـه
تــو فيـق چــه نه وی څوك به تقوا کـا

* * *

نه قهقـه خا نـد ه عا شـق که غم‌کـا
غـم کا بـې تا نــه تل تل ما تم کــا
يوسف که هر څو ښه نوميـږی(۲)
په بــه يـې چېر ي نه تا عـا لم کــــا

---

(۱) دپښتو ټولنې په دواړو قلمی نسخو کښې دامصرع داسې راغلې ده:
دترخو قدر خواږه څرگند کا .
(۲) په دوهمه قلمی نسخه کښې ( نومړشی ) راغلی دی .

چه په ځوانۍ کښې پرهېز د کـك کا
کـه اد مـزاد و ی کـار د ملـك کـــا
پرهـېز پیـری لـــر ه پـه‌کـار د ی
تـش د ې پـــه وخت د ځوانۍ زړه ډك کا
* * *
چه خاند ی نوړو و تـه کتـل کـــا
ژا ړه خوشحا لـــه دا خوی که تل کـــا
سترګـې یـې نه دی دواړه قصاب د ی
چـړ ې په لاس کښـې واړه کو تل کـا
* * *
چه ډېر د خول کا یـا ډېـر خورا ك کا
چـه ډېر ویل کـا ځا ن به هـلا ك کـا
دخول ډېـر خر کا خورا ك ډېر ستورکا
په سړی‌هوښ‌کښې‌دې سړی خپل‌ژواك کا
* * *
چه طبیبا ن مـې در نـځ در مـا ن نه کا
رنـځ مې که ډېر شی بیا دې ار مان‌نه‌کا
کفر که ګـورې فـر مـا ن دنفـس دی
مو من بـه هېچېر ی دنفـس فرمان‌نه‌کا
* * *
چه طبیب یـې د ز ړه پـه زور کـــا
دا رو یـې درد شی ځـا ن دپېـغور کا
دور څه نور شـو کـه څه بـلا شـو ه
د شهـسوا ری لا پـی خر سـور کـا
* * *
چه عا شقـی تـــه هوا هو س کــــا
خپل ځا ن دې ژا ړی خپل ځان دې‌خس‌کا
چه عشق مـې و لیـده پر ې‌خندا راشی
چــه عا شقـی تـه هوا هـر کس کا

چه ښکښی ستا نه د زلفو راز کا
هغه دې فکر دو رو درا ز کا
که هر څونا ز کړې ناز به دې زه وړم
دښکلیو دود دی په عاشق ناز کا

* * *

چه (۱) له حرامه سړی نفرت کا
خدایې به یې (۲) ارت حلال نعمت کا
هو مره به لو یې مرتبې مومی
چه دښکا نو سره صحبت کا

* * *

چه نوکری کا څوك دپر ګنده کا
سړی آزاد وی خپل ځان بنده کا
تر آزادۍ نه بهتر هیڅ نشته
چه څوك په کور کښې خپله(۳) دنده کا

* * *

ځان به په قدر هغه فرزند کا
چه چارې وا ړه د پلار پسند کا
روښ یې وا ړه د پلار روښ وی
خپل نوم تر پلاره نیکه بلند کا

* * *

ځینې په علم ګردن د راز کا
ځینې په زهد په شیخۍ نا ز کا
ما سر نیولی د عشق په کار دی
ما دې په دا کښې خدای سرفرازکا

---

(۱) په لومړۍ قلمی نسخه کښې (چو) راغلې ده چه ختك یې د(څو) پرځای وایی .
(۲) په دوهمه قلمی نسخه کښې د (یې) پر ځای (پرې) راغلې ده .
(۳) په دو همه قلمی نسخه کښې (ځان دهنده‌کا) راغلی دی .

ځيني يوه کا ځيني دوې درې کـــا
پـه انځو رو نـو کـبنبېدې سرې کـا
ددنيـا خلـك يـار ی يـار ی کـــړ ی
چـه سو د يـې نه وی ياری يې‌پرې کا

* * *

ځو دې زړه خاند ی خو له د ې خنـداکا
چـه زړه دې ژاړ ی سترګـې ژړا کـــا
مدار د هر ې چـار ې پـــه ز ړه د ی
زړه دې مـفتـی دی هـره فتـوا کـــا

* * *

څوك چه بد ذات ته علم هنر و ر کـــا
خو نی رهز ن تـه توره خنجر و رکـــا
دځـا ن غليم به دګرګك بچـړ ی سا تی
خپل به يې نه شی که خپل ځيګر ورکا

* * *

څوك چـه له خلکـه شور و غو غـا کـا
نا دا ن حريص دی هغـه چـه دا کـــا
چه عا قـلان د ی چـه صا بـرا ن د ی
هغـه بـه کله جنجا ل لـه چـا کا

* * *

څيز چه کمياب شـی عز ت پيـدا کـا
زنګـی په هنـد کښې قيمت پيـد ا کا
حلو ! چـه مو ړ خو ری لذ ت يـې نه‌وی
ډوډی په و ږی لـذ ت پيـــدا کـــا

* * *

خاص به له عا مـه اختـلا ط کـم کـــا
کـــه کا بد کـار کا پـه ځان ستم کا
پړانـګ چـه ګيد ړ و سر ه جار و زی
خپل ځان په خپله له ګيد ړ سـم کـــا

خو شحا ل چــه تشه مینه په بل کـا
تر حلـق (۱) به پور ته خا لی ویل کا
خدای یې و ر پر پرده یو هسې یار لر ی
پــه قهر راشی ور ته ښکنځـل کـــا
* * *
دا پند د ې هر ځوك سره سند کـــا
هوښیار به نه و ی چه څو ك حسد کـا
همراه چه ښه و ی بـد سړ ی ښه کا
همراه چه بدو ی ښــه سړ ی بـد کـا
* * *
دباغ گلو نه عجـب نـــما ی کـــا
ځینې غو ړ پـړی ځینې آی آی کـــا
سوسن تــه گــو ر ه پــه هر ه ژبــه
بــې حر ف و صو ته ثـنا د خدا ی کـا
* * *
دا ور دتیغ سره دې سړی بازی نه کـا
له مار لړ م سره دې مهم سا زی نــه کا
چه نه تد بیر لر ی(۲) نه جود نه تـوره
هغــه سړی بــه سر فراز ی نـــه کـا
* * *
ډیر دی چه تا ته خپل ځا ن ملــك کـا
په ښو خبـر و ځان پـــه فلــك کـــا
نعو ذ با الله چــه ښه یــې ځیر کـړ ې
شیطا ن تر ځــان پو رې لکه کود ك کا

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښې دا مصرع داسی راغلې ده :(ترحلق په پورته چا ته ویل کا ).
(۲) په دوهمه قلمه نسخه کښی (کوی) راغلی دی :

ډېر ډېر فکـرو نه چـه آدم زاد کـــا
عقـل یـې ولاړ شی جنو ن بنیاد کـا
چه ډېر درو غ وایـی فسق فساد کـــا
خپل ځان پـه خپله پـه بلا یاد کـــا
* * *
زر دی چه زېر مـه دننګ و شر م کـا
صحبت د هر چـا و بله ګر م کـــا
ډېر ګرا ن کا رو نه پــه زر اسا ن شی
زر پــه فو لاد کښېږد ه فولاد هم‌نرم‌کا
* * *
زر دی چه هر چا ته اعجاز معلو م کـا
معدو م مو جود کا موجود معدو م کـــا
وینځه مـېر من کا خا دم مخدو م کـــا
زر په سندا ن‌کښېږ ده سندان‌هم موم‌کا
* * *
ژاړه خوشحا لـــــه که تل دا دو د کـا
چه پېچمې (۱) ستا په مینه مښو د کـا
چه را ښکاره شی په خوب و خیا ل‌کښې
(۲)خواشینی زړه مې په دا هم سود کا
* * *
ژوند ی که هر څو ژړا غـو غــا کـــا
مړه کله بـېر ته را تلنه بیـا کـــــا
سکه لکـه دو د د ژونــد یـو څـه د ی
دی دې په صبر کښــې کار ددنیـا کـا

---

(۱) پېچمې = تمسخر .
(۲)په اوله قلمی نسخه کښې «بڅن» راغلی دی ، چه دغمجن‌معنی ورکوی .

سړی آزادوی آزیې بنده کا
بنده لا پرېږده لا یې ګنده کا
هومره خوارېږی خو آز دژړه لری
په خو خو رنګه یې بیا شرمنده کا
* * *
سړی دنېکو عمل ارشد کا
دا یې ها له وی چه بخت مدد کا
چه بخت یې ښه وی عمل هم ښه کا
چه بخت یې بد وی عمل هم بد کا
* * *
سفله په خپله خپل ځان رسوا کا
چه د ولتمن شی غیرې هوا کا
سفله قاضی مه شه شراب دوا کا
سفله طبیب مه شه رنځ لا دوا کا
* * *
سېلاب په خو ځاځکی غرپرپیدا کا
بنیاد یې نشته غرپرپه دا کا
چه لوی وی نوریې صفت ثنا کا
دریاب چه لوی وی کله غوغا کا
* * *
شوده چه رغاندی ثنا ددوغ کا
هرڅوک پوهېږی چه دا دروغ کا
فرق دویلو خبر و ډېر دی
وکیل چه بدوی روغ کارناروغ کا
* * *
شیخان چه هسې اوږده نمونځونه کا
پکښې باغونه اسونه جونه کا
پکښې رنګین رنګین ګنده ګین ورېښمین سکښې
پکښې دسپینو دسرو ګنجونه کا

شیخا ن چه هو مره بند ګی طا عت کـا
که اجر غـوا ړی څـه قـبا حت کـــا
هغـه بند ه بـه نـا بـو د بنـد ه و ی
چه به پـه طمـع دښښتن خد مت کـــا
* * *
طمع بـلا ده اصیـل بنـد ه کــــا
ښه ښـه سړ ی و ی دا یـې ګند ه کـا
ما ډېر لید لـی د ی چـه تمه نه لـر ی
په باد شا ها نو پو رې خند ه کــــا
* * *
عاشق دې هېڅو ك مـلا مـت نـــه کـا
زړه یـې خپل نه دی و یل دې څـه کا
او ر یـې د عقل پـه خو نـــه ولـګـی
چه ددلبـر ې ستر ګـې تر زړه کــــا
* * *
غنی که هر څو د زر و وېـش کــــا
پـر وا پر ې نه لر ی صبر در وېش کا
دا صبر ښــه د ی د غنی تر ور کـړ و
صبـر به نوړ نور نعمـت در پـېښ کا
* * *
فلك کجرو د ی کـا رو نه کـج کــــا
دا نـا پـه غـم کښې کا نا (۱) فرج کا
دصا فـو میـو پـیا لـې درو ښو ی
بیا پکـښې هو مره خمار مز ج کـــا
* * * *
قا بل که تښتی دو لت تـه شـــا کـا
دولت یـې مخی ونـه راتـله بیـا کـا
بـدر هـلا ل شی هـلا ل شـی بـد ر
په کم ځ کا ست کښې کله پر وا کـــا

---

(۱) په دواړو چاپی نسخو کښې دکانا پرځای نادان لیکل شوی دی .

قا ضی چه او م وی بې علمه کار کـــا
هـم خپل ځا ن خوار کا هم خلك خوار کا
غلط غلط لـولـی خـطـا خطــا وا یـــی
وسل لعنت ته خپل ځا ن تیـار کـــا

* * *

که بد خوا ها ن د ې ښېر ې غو غـــا کا
لا دې یې ډېرې په هـر سبـا کــــا
خوشحا لـه غـم د ښـېر و هیڅ مه کړه
سـل کـه ښیـری کـا دوه سو د عا کـا

* * *

که څوك پیـدا شی چه عد ل و داد کــا
غوږ د درد منـو په داد فر یـاد کـــا
چه مقر ب د ی عـر ض یـې لـګیـږ ی
عمر یـې ډېر شه خوشحا ل د ې یاد کا

* * *

که وا ړه خلك ثنـا د خــدا ی کـــــا
نور هرڅه پرېږدی‌خودا (۱) های های کا
ثنا یې ډېره ده تـر حـساب تـېر ه د ه
څو ك به یـې کو مه ثـنا په ځا ی کـا

* * *

که هر څو سعی کوښښ څو ك و کــا
نه به ښه بد کا نه بـه بـد ښـه کـــا
وایی چه زوی مـی هو ښیار قابل شـی
چـه خدا ی یـې نه کا خوشحال به څه کا

---

(۱) په درې واړو چا پې نسخو کښې (دی) لیکل شوی دی .

ګل چه په باغ کښې جا مه رنګينــه کـــا
خو چه تاز ه وی بلبل پر ې مينه کـــا
په ښه صورت سره په ښه نګهت سـر ه
ګل د بلبلــې ميــنه مــتيــنه کـــــــا
* * *
ګنــی بند بــند کا و تا شکر در کـــا
سر د صد ف پر يکړ ه وتا ګــوهردرکا
بتــر تر کا نـی مه شــه خوشحا لـــه
کــا نـی چــه و سبز ی و تا تــه زردرکا
* * *
لقمه حــرا مه نــطــفه نا پــا ك كـــــا
فرزنــد چــه وشی چا ري بې با ك كـــا
تقو ی پــه دوا ړه کو نه لــوی کار لر ی
په هر هر کار کښــې خو افر حنــا ك كا
* * *
لو يی هغه ده چــه يې لو ی خدای و رکا
لويی هغه نه ده چه يې کتخدا ی و رکـــا
لويی له خدا يه د ه نه لــه هما يــه د ه
دخدا ی په حکم سيو ری هما ی و رکـــا
* * *
ليندہ هغــه ځکوه چه مټ دې خوږ نه کا
ښــځه هغه کوه چه زور دې لږ نه کـــا
دهغې غوښې کباب پــه خولــه مــه کړ ه
چه په سکرو يــې قطره ځږ بږ نه کـــا
* * *
ما ډيــر ليد لی د ی چه نر دشطر نج کا
ځينې شطرنج کا ځينې صدرنج کـــــــا
ځـيــنــې نتــلــی ددو ويــك د ی
ځينې ذو قــو نه پــه شش و پنج کـــا

ما وي نن شپه به را سره تېره کــــا
را تــه به شمع دمــخ بــر ســېر ه کــــا
سنګین مــې بخت ؤ چه در سته شپه يې
وعده دو صل له دلـــه هېره کــــا
* * *
مخ چه په پسو ل سره و تا ته زېب کــا
ګنه يــو تګک و ی مکر و فريــب کــا
مخ هــم هغه ګنه چه پسو ل يــې نه وی
تا خت دي په دين ؤ په دل شکېب کــا
* * *
مر دان نــن جنګک کــا اشتــی سباکا
چه سره کنبېــنی صلــح و صفــا کــا
څو يــې ژړا و ی هو مر ه خنـــدا و ی
څو يــی جفا و ی هـــو مر ه و فــا کــا
* * *
مر د بــه د تــېر و چا رو ار ما ن نــه‌کا
رنځور چه و مر ی څو ك يې در مان‌نه‌کا
مردان هغــه دی چه شر م ننــګک لر ی
لاف دي د شـــر م دا بــې شرمان نه کا
* * *
مغرو ر په چرخ مه شه که دي سلطا ن‌کا
زبو ن د چر خ مه شـــه که دي‌چوپان کا
خوا ږه تر خــه يــې بقـــا هــېڅ‌نه‌لری
نوی نقــشو نه پــه هر زما ن کــــا
* * *
نا مرد هغــه د ی چــه و چا څه ور کــــا
منت د پــاسه و ربا ند ي ز بــر کــــا
په رنــځ کنبې و مر ه هغه دارو مه‌څوره
چه پــه منت يــې و تا څو ك در کــــا

نوري نو ري سره موا فقت کا
ناري نار ی سره موا صلت کا
توتي تو تي سره موا نست کا
زاغ د زا غا نو سره الفت کا

* * *

نه سر داري و رکانه زر دا ري(۱) ورکا
نه لوی ملکو نه او به جار ی و رکا
چه له از له خدای خو ك نمنځلی د ی
هغو سړ يو ته خدای هوښیاري ورکا

* * *

ورځ چه کړه شي خدا ی د ې اما ن کا
دا هسې فضل مګر (۲) سبحا ن کا
چه لکه سمه وه بیا هسې سمه شي
فکر دې هر خو ك سره په ځا ن کا

* * *

وخت د قیا مت د ی حذر له هر چا
پر یکړ ه خو شحا له با ورله هر چا
ورونه که زو یه د خپل غر ض د ی
په کار کښې لښې تېر له هر چا

* * *

وګړي وا ړه کا رو نه خپل کا
مر دا ن هغه دی چه کار د بل کا
خو ك چه آرا م ګټي دنېکو نا م ګټي
دخو ږو ز ړو نو دا رو به تل کا

---

(۱) دپېښور په دواړو چا پي نسخو کښې (زرکاري) راغلی دی.
(۲) په دو همه قلمی نسخه کښې (دافضل‌هسی) لیکل‌شوی‌دی.

هغه باز چه په عصفور (۱) غوټی کا
که دی څه باز د ی کار دبا ښی کا
دبزر ګا نو همت بلند بو یه
کار دی په قدر د مرتبی (۲) کا

* * *

هندو دقندو و ز ن په تلو کا
خو شحا ل یې ګو ره تر لب و تلو کا
شکر ې و خو ری مز ه یې و لاړه شی
خو ږې خبر ې لذ ت تر تلو کا

* * *

هوښیار به هچیر ې بې ځایه کار نه کا
هم به بې وخته دخولې گفتار نه کا
په خوله په لاس به هېڅو ك آزار نه کا
چه بد کر دار و ی هغه به یار نه کا

* * *

هوښیار به هېڅکله ویل باطل نه کا
هم هر یو چا ته درا ز و یل نه کا
دژبې ځای به یې ننه په زړه کښې و ی
دز ړه بې حکمه به خبر ه تل نه کا

* * *

هوښیار به مینه په ور مو نو زیا ته کا
ور مو نه و ایم که څو ك مخ راته کا
محتا ج دنورو نو رو نغر یو شی
سړ ی چه خپله کټو ه ما ته کا

---

(۱) عصفور = چرچڼه .
(۲) دپښتو ټولنی په دواړو قلمی نسخو کښی داربا عی نشته .

هوښيار په خپله و رته ځا ن ٠ پړ کا
نا دا ن و رځی په قا ضی غړ پړ کا
که دولتمن وی چه نا انصا ف و ی
په وړ ا ندې ورو سته ځا ن دکيږ(۱)کا
* * *
يو چه رښتيا کا دو يم (۲) درو غ کا
عجب که کار په د رو غو رو غ کا
رښتيا غو ړی دی درو غ متيا ز ې د ی
څراغ په غو ړ و سر ه فروغ کا
* * *
يو مو ټی خا ورې زيبا صورت کا
ز ړه يې کڅو ړ ه دمعر فت کا
ګويا يې ژبه په خپل صفت کا
بيا يې له خاو رو سره لت پت کا

## (ت)

تيرا مې و غو ښت رسم مې و کو ت
رنځ مې دواړو ځايو نو ولوت (۳)
يم دی که غم د ی په بر مو ل کښې
په ګرو ل مې پو ستکی و خو ت
* * *
ستا تر چشما نو خما ر دمل کښېنا ست
ستا تر خبرو ږغ دبلبل کښېنا ست
چه دې رخسار ه و رته ښکاره کړ ه
څکه په سپينو خولوکښې ګل کښېنا ست

---

(۱)کيږ مات خاو رين لوښی .
(۲) په دو همه قلمی نسخه کښې د (دويم) پر ځای(بل چه )ليکل شوی دی .
(۳) دکامل په چاپی نسخه کښی د(ولوت) ترجمه (بياموندنه) ليکل شوې ده .

دهند له تخته شــاه جها ن پر یــو و ت
غم په هرلوری په درست جها ن‌پریووت
دهند په‌تخت چه عالمګیر کښېنا ســت
په خلکو کاڼی دشنه اسمان پــریوو ت
* * *
غم دی کــه غر دی را با ندې پــر یووت
که سرې لمبــې دی زړه مې پرې‌کښېوت
راباندې تل تــل دغم تا ختــو نــه د ی
ز بو ن یــې بیا موند م خــورا پسې‌ووت
## (ر)
خواړه د مهــر و ی خوا ړه د ز هـــــر
و رېــځ دږ حــم و ی و رېــځ د قهــــر
ځینــې و رېــځــې وا ور ې او بــه و ی
ځینــې ږ لـــی تنــد ر د د هـــــر
* * *
دمار کـــــه نه و ی پــه تن کښې ز هر
سر دار کــه نه لــر ی خنجــر د قهــر
دا دوا ړه تو کـــه بـــه ز ما په پو هــه
نه یاد پـــه کلي و ی نه یــاد په ښهر
* * *
دین دی کــه دل کـــه عقــل ، صبـــر
لــه ما یــې یو و ړل وا ړ ه پـــه جبــر
اوس را تـــه پا تــې دا یو نفــس د ی
دا بــه هــم یــو ســی بچــی د ګبــر
* * *
که قا یم اللــیل یی کــه صائــم الد هر
غم به لا ډېــر کړی د خـــدا ی د قهــر
دمخــلصا نـــو خطــر لا ډ یـــر د ی
سړی شکــر ې خو ری په‌کښې وی زهر

# (ړ)

پلار یې په بند ورور یې بند بند کړ
ځان یې هم شیخ کړ هم دانشمند کړ
اوس په غزا کښې خپل ځا ن غازی بولی
په څو څو رنګ یې خپل ځان څرګند کړ

* * *

ته ولاړې درنګ ته خپل ځای دې درنګ کړ
په درنګ دې ولې دا هومره درنګ کړ
ستا په فرا ق کښې لکه نا رنج شو م
غم د ې هم چېر ې ز ما د رنګ کړ

* * *

چه کنګه (۱) پیغله شوې کبر دې ډېر کړ
خصلت دې واړه په بل بل پېر کړ
چه سپینه خو له د ې و رته نو مړې وه
هغه دې و لې له دله هېر کړ

* * *

خپل ځان یې روغ کړ یار یې بېمار کړ
یو څه بنه یار دی خو شحال چه یار کړ
لایو نا تر س دی یا یې یار ی نه زده
یا یې په کار نه دی ترځان یې ځار کړ

* * *

خوار ز ړه مې واخیست په تامې باندې کړ
تر ډېرو ډېرو اندېښنو مې لاندې کړ
سترګې دې باز دی ز ړه مې تنز ر ی دی
خلاصی یې نشته اوس یې دوړاندې کړ

---

(۱) دنګه ، لوړه .

در خو هوښيار ه وه‌ځان يې نادان کـړ
نو م يې بـد اصـل د آدم خـا ن کـړ
تل يـې د مور او دپـلا ر پـېغور تا ړه
په زړه يې مينه کار يې دا شا ن کـړ
* * *
زو يو مې خو ی دختـيکو نـو ر کـړ
زما په نقش يـې پو ري سورا ور کـړ
وخـت د ګتـنې د نـا م و ننـګ ؤ
بدو زا منـو را څخـه خـو ر کـړ
* * *
غا فل خوږ عمر پـه ځا ن ګنه پـر کـړ
اميد يـې لږ شو حسرت يـې ډېـر کړ
نه يـې څه ور کړ ل نه يې څه واخيستل
عمـر يـې هسـې ا بتـه تـېـر کـړ
* * *
ماچه دا هسـې در پسـې ځـا ن کـړ
ددنيا کورمې د ر پسې ورا ن کـړ
دز ړه پـه حا ل مـې واړه پـو هيږی
ډېره هو ښياره يـې ځا ن دې نادان کړ
* * *
مخ دې له ورا يـه را تـېـه عيـا ن کـړ
اوږ د ې را پو رې په خا نما ن کـړ
نظر دې هو رې پـه بل بل شا ن کـړ
اشنا مـې نـه ګـنې ځـان دې نادان کړ
* * *
نادان په خپله دځـا ن غـم ډېر کـړ
نا بودې پو هې سره تېر بـېر کـړ
هغه چه هـېر بو يـه هغه يـې ياد د ی
هغـه چه ياد بو يـه هغـه يـې هېر کړ

## (ق)

وخدای تـه خوار د ی بهتـر د خلـق
لـه خا نه پر ي کـړه با ور د خلــق
که خپل دخدای یـې پـه حقیقت کـښنې
مو مــن د خدا ی شه کا فـر د خلــق

## (ل)

چه دلیـد لـو وو هغـه مـې و لیـد ل
چه د خو ړلـــو وو هغـه مـې وخو ړل
اخـر کـه ګـو ري دا وا ړ ه هـېـڅ د ی
لکه مـې و و یـــل هسی مـې و منل

* * *

خانان یـې واړه تــلاو ت خوان کـړ ل
دهنـد هند وا ن یـې دانشمندا ن کړل
وخت دا و رنـګ د ی عمل هېڅ نـشته
خوږکتا بو نـه یـې په عا لـم ګرا ن کړل

* * *

دخـان مـې ولیدل اخوان مـې و لیدل
یا را ن مـې ولیدل دو ستا ن مـې ولیدل
چه ښه مې خیر کړ ل واړه سړی نه د ی
سګا ن مـې ولیدل ددا ن مې و لیـد ل

* * *

را شــه که ګو ري اهـل نـا اهــل
یو ابـو بکر (رض) ؤ بـل ابو جـــهل
پـه ابو بکـــر محـمد (ص) لــمر ؤ
پـه ابو جهـل تـر سـها (۱) سهـل

---

(۱) یو ډېر وړو کی ستوری دی .

که لوی ملا شې په لوستل لوستل
آدم که نه شې لوستل دی نوستل (۱)
څینې لوستل کاځینې نوښتل کا
په شان شان کېږی سبق اخیستل
* * *
یا ران مې و لاړل تر خاورولاندې شول
مونږ ه یې پرېښوو ترمونږدوړاندې شول
په ګورېې ورشم سپاندې پر ې و وینم
مګر زمو نږه د پاره سپاندې شول

**(م)**

اوس زه په خپلې چارې خور سند یم
مال ملک مې نشته زا هد خرګندیم
خو دا عالم مې و ر پسې نه پر پږدی
لا ځنې نه شلیږم په قسمت بندیم
* * *
او لاد مې ډېر دی منت د خدا ی لرم
دوا ړو مهر په زړه کښې ځا ی لرم
یو خو بد بخت دی زوا ل یې زر شه
دد وی له بده خو یه ها ی ها ی لرم
* * *
* * *
بل ته شړلی ، لیږلی تا یم
بیا په دا کار کښې کږلی تا یم
چه ستا په نه دید د څنګند ن شوم
که مې ته نه و ژنې وژلی تا یم

---

(۲) نوستل = پاشیدن ، مګر په قلمی نسخو کښې لوستل دی .

پر یشان په ځان کښې په ډېر حیرت یم
څه و م دا څـه شوم په څه حا لت یـم
چـــه تل مې ځـا ی شو ل غرو نه رغونه
زه دا پـــه چـا پســـې مجنو ن صفت یم
* * *
په خو ب کښې هر کله بو ی د دنیا و ینم
جر ګـې جنګو نـه هو س هوا و ینـــم
مــګـر یـك لختــه د دنیــا سر ی یـم
چـه نه یو شیــخ وینم نه یو ملا و ینـم
* * *
په زړه کښې ستا د کوڅـې غبار لــر م
په سر کښې ستا د ییا لـې خمار لـرم
پر یشا ن د زلفـو بیــما ر د سترګویم
زه دا دو م تو کـه له تا یاد ګـار لـرم
* * *
په سر داری چه پـو هـید لـــی یـــم
سر دار ی غم ده تر ې تـر هید لی یم
ورځنـې و تښتـم پـه غا ړې غـرو نه
لا یــې تــر او سـه په غـم نیو لی یم
* * *
پـه غـم دې سـو ی لو غړ ن ز ه یـــم
سبا بیـګا پـه او ښو او بـــه یـــم
دعشیق سپا ر ه د ې پـــه ما هر انډ کړل
په رنګك ز پلـې سو ی پـه ز ړه یـــم
* * *
په غـم غمجن و م په خوب کړ مـن و م
خلا ص لـه غمو نو ستا پـه دیدن و م
په خوب په هسې رنګـه او ده شـو م
چه خلـك و یښ و ی زه پـه خفتن و م

پیری په ما را غله زه یې تا راج کړم
زه یې محتاجو ته محتاج کړم
زنسغ دپیری دی بتر بتر شي
فا یده یې کومه چه یې علاج کړم
* * *
پیری په ما را غله زه یې خراب کړم
په پیچ و تاب یې دهر اسباب کړم
هر هر اسباب یې له ما نه یو وړ
فایده کومه چه پیچ و تاب کړم
* * *
ترعین (۱) تېر شوم دا حسي زه وینم
احول یو دوه وینی زه یوا ووه وینم
ترفي(۲) که ورشم غقد(۳) سبز کال دی
او وه به شل وینم دا کار زه بنه وینم
* * *
توبه مې وکړه له میو پیر شوم
پسر لی چه را غی په زړه دلگیرشوم
دگل په مخ مې باده را وا خیستــه
بیا د خواتی و کار ته خیر شوم
* * *
چه جدا شوی یاران تر زړه کړم
لیمه په دېر و ژړ لو سره کړم
کتبینم بیا صبر د خدای په کړه کړم
چه صبر نه کړم وایه نور څه کړم

(۱) ع = ۷۰
(۲) قف = ۸۰
(۳) غقد = ۱۰۸٤

چه ځان ته ګو رم ځـا ن ګنهګار لـرم
دنفس لـه لا سه فرياد چغـار لـر م
حال مې به څه وی که استغفـار نـه وی
شکـر چـه ژبـه د استـغفـار لـر م
* * *

چه ځان ته ګو رم لا حسې زو ړ نـه يم
چه ځينو ځينو چا رو تـه جوړ نـه يم
چه غا ښ مسې پرېو تل فساد را وشـو
که هرڅو غوښې خو رم په غوښې موړ نه يم
* * *

چه خپل عمل ياد کړ م خا ورې په سرلورم
ډ ك لـه ګنا ه تما م د فتـر لـر م
وخت دحسا ب را غـی بلـه تکيه نشته
تکيه دخدای لـر م د پيغمبر لـر م
* * *

چه سردې خوږ شی ار ما ن ارمان کړ م
وايم چه رنـځ دې واړه پـه ځا ن کړ م
څو دا جهان د ی هـو مره دې تـه و ي
که نه اور يو رې پـه درست جها ن کړم
* * *

خالـق زما يې پـه د ا پـو هـېږ م
حکم دې حق دی منم ګرو هېږم
چه دې ظلو م او جهـو ل پيـدا کړ م
پـه بـه مې نيـسې دا انـدو هېږ م
* * *

خبـر د دهـر پـه مکر د ر وه شوم
دا څـه چه ښا د شم يا په اندو ه شو م
نه يـې ښا دی شتـه نه يې اندو ه شته
دوا ړه فساد دی چه ښه پر ې پوه شوم

خلك هو ښيار دي زه لېونی يم
نه او سني يم لا نر غونی يم
هغه اچه لا پې د هوښيارۍ كا
تشې در مې دي پكښې ګنی يم

* * *

دا از ميښت ګوره په ما چه زوړ شوم
له نورو ځاړو په زړه كښې سوړ شوم
دا پاتې مينه د ښو دلبرو ده
چه زوړ شوم لا يې په عشق جوړ شوم

* * *

داته يې ياره كه دا زه خواب وينم (۱)
داته يې ياره كه په شپه آفتاب وينم
چه ستا د زلفو نكهت مې ولېده
مه تور عنبر وينم مه مشكناب وينم

* * *

دا ډير فكرونه چه صبح و شام لرم
چه فكر وكړم وا ړه يې خام لرم
خلك په مخ كښې داختيار خبرې كا
فهم مې وكړ دا ختيار نام لرم

* * *

دايم كه زړه له دلبرو ونيسم
پسې ړند پرم زړه به په څه نيسم
څو مې څو ندو ناشته په دا دنيا كښې
زړه به له ښكليه مخه ونه نيسم

---

(۱) دغه رباعي په قلمي نسخو كښې نشته.

دچا چه نــه وی د ستـــر ګـو شــر م
در ته به نــه وی په پنــدو نــر م (۱)
ځنــې اما ن غــوا ړ ه کــه دې پسرو ی
پلار وا لــی پر یکړ ه له بې آز رم (۲)
* * *
دچرخ له څرخه و څرخ ته ساز شــو م
نیاز من د هــر هر ناکس دنا ز شــو م
لکه په لا س د بې شنا ختــو کښېو ځی
هسې بــې قــدره پر ما تــی باز شو م
* * *
دښکار په کار کښې ز ړه د ځوانۍ لر م
غــم د پیــر ۍ او نــا تــوا نــۍ لــر م
سترګــې هغه نــه دی قو ت هغه نه دی
چه باز پــه لاس کــړ م څو حیرانۍ لرم
* * *
دښکار په کار کښې کــه هر څو ښه یم
چه باز مــې ځا ن دی هغه یو زه یـــم
په باز کــه هر څو قا زو کلنــګ نیسم
زیره مــې سپینه شوه‌میرښکارلانــه یم
* * *
زه تا پیدا کــړ م پـــه دا قا یل یـــم
که بیا مــې و ژنې د لګیر پــه د ل یـم
وایــې چه بیا به دې بـــل ژوندو نوی
هــر چــه تـــه وایــې زه په منل یـــم

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښې داسی ده (ورته‌به نوی‌پندونه‌نرم)
(۲) ازرم = شرم ، حیا .

زه په خپل ملك كښې خودا دوه(۱) دم لرم
ښايسته پردی ، نصرت قدم (۲) لرم
يوه مې تور ه دو يم مې دا ل دی
په دا خو تو كه عرب عجم لرم
* * *
زه كه مې خو ريم يا شا هد با زيم
فسق و فجور كړم گنده بې نمازيم
اندو ه مې نشته خبر په را زيم
په ولا تقنطوا كرم ته سا زيم
* * *
زوړ كړم غمو نو دا شنا زوړ كړم
له كل هوسه يې ددنيا سوړ كړم
څو څو تا وو نه را باندې تېر شول
كومې مې وچ كړ هجرا ن نچوړ كړم
* * *
زويه كه هسې وی لكه چه زه لرم
كه هر څو ډېر دی يو زويه نه لرم
يو يحيى خا ن نه شو يوا كو ړی نه شو
چنجو منجو دی پټ به يې څه لرم
* * *
سخ خو زما دی چه هسې يار لرم
چه يې له لاسه دا زړه خوار و زار لرم
كه را ته كښېني په تا ډېر كار لرم
در به يې پر انيز م دګيلو بار لرم

---

(۱) دم ، سا ، وخت او حال ته وايي .
(۲) دكامل په ديوان كښې له ښايسته پر خخه باز او نصرت قدم خخه اس مراد شوی دی .

شهره په واړه عالم مدام ښه یم
پر پرده په خوله کښې د خاص و عام ښه یم
شیخه ته شیخ یې زه رند هیڅ مه وایه
ته دې نېکنام او سې زه خوبدنام ښه یم
* * *

قرآن دوړاندې په لاس کښې جام لرم
په تون لون حلال حرام لرم
عمل مې تریخ دی که خوږ کلام لرم
نه درست کافر یم نه درست اسلام لرم
* * *

که ته جفا کړې زه به وفا کړم
که ته ښېرې کړې زه به دعا کړم
خو دا جهان دی هو مره دې ته وی
که ته مې نه وې نیاز به په چا کړم
* * *

که دا ګناه دی چه په تا چوز یم
سکه سر تر پایه له ګناه پوریم
د تورو زلفو په مار دې و خوړم
ګونه مې زېره په زړه رنځور یم
* * *

که دې له خویه چاته فریاد کړم
یا هیڅ دم نه و هم صبر بنیاد کړم
په دوا ړه توکه زما پروانه کړې
یو خه نا ترس یې خه به دې یاد کړم
* * *

که نور په نورو چارو جلی ستا یم
زه به د تورو په کار علی ستا یم
ورور در سول دی ور باندې ښایی
که یې له فرقه بیا تر تلی ستا یم

که وینــي ژا ړ م ګریوا ن چاك چاك کړم
پــه غو لی ګــر ځم غو غــا بلغــا ك کړم
په دا بـــه تللــی یا را ن را نه شـــی
سکــه با ید ه دا دی چه ځان بې باك کړم

* * *

لکه ملنګك وې زه دې ملنګـــ کـــړ م
لکه بــې ننګـــ وې زه دې بې ننګـــ کړم
څوك یې! خــبر دې د ذا تــه نــه یــم
پــه څه حیلو (۱) دې دځان د څنګك کړم

* * *

له خپله بختـــه و چا تــه زار کـــړ م
زرمــې اغیار شـــی چه زه یــې یار کړم
نور مــې تو به ده کــه اکو ړ ی را شـــی
نه بــه یې یار کــړ م نه به یې پـلار کړم

* * *

ماوې چــه تا به دځا ن پــه رنګك کړ م
لکه ملنــګك وې زه دې ملنــګـــ کړ م
سـړ ددو هین (۲) شوم تر بله کا له
د ځا ن به لــو یه مصلــه لنـــګك کړ م

* * *

مرګك دنـــا اهل سبــا بــېګا غــوا ړ م
د عــا مـــې داد ه الله غـــوا ړ م
زما تو به د ه دبهــرا م لـــه خیـــر ه
دده لـــه شر ه امــا ن پنـــا ه غوا ړم

---

(۱) په دواړو چا پی نسخو کنبی د (حیلو) په ځای (خپلوی)راغلی‌ده
(۲) دو هین ددوهی معنی ورکوی .

مرګ را نژ دې راغی پیر ی (۱)خبر کړم
غا ښونه لا ړ ل غم د بصر کړ م
وخت دا را م ؤ د ز ړ د کا م و
قسمت په غاړو په غرو نو سر کړ م

* * *

مرګ را نژ دې راغی زه لا غافل یم
په شور و شر کښې ددنیا تل یم
په تور وېښته مې سل ګناهو نه
په سپینه ږ یر ه لا ډېر خجل یم

* * *

مرګ رانژ دې شو زه لا ار ما ن لرم
که زوړ لیده شم اختیار د ځوان لر م
ار مان مې جو نه د ی د نام جنګو نه‌دی
مقصود مې ښکار دی غم دایما ن لر م

* * *

مست یم په سر کښې مستی دمی لرم
چه په نشه یې کی کی کی کی لر م
رقص مې په تار د هغه ر باب د ی
چه په نغمه یې هی هی هی‌هی لرم

* * *

نه زر په کور کښې نه کښت و کار لرم
وابست له ځا ن سره تر سل بسیار لر
رزاق دخلک یې په دا اقرار لر م
څه غم چه تا غو ند ې پر ور دګارلرم

(۱) په چاپی نسخو کښې د (خبر) په ځای (کړ) راغلی دی .

نه مرد دکفر نه مر دد ین یم
نه دګما ن یم نه دیقین یم
په دوا ړه تو که مذ بذ بین یم
هم په زړه تو زیم هم په زړه سپین یم
* * *
وایی جنت لر م حور او قصور لرم
بل دار تر دا نه په نعمت پو ر نر م
چه وایی هسې د ی واړه منلی
ما ته دا پر ېږ ده چه دا حضور لرم
* * *
هو مره خطا لر م څو چه عا قل یم
هو مر ه هوا لر م څو چه فاضل یم
تسپې په لاس کښېږ ړه په وسواس کښې
و لاړ په با طلو کا رونو تل یم
* * *
یار مې کا فر د ی زه مسلما ن یم
دده له بده خو یه په ځا ن یم
زړه یې زما له ګو ګل و کیښ
ځنې په و بر ه د خپل ایما ن یم

(و)

باد شاه سنی دی خلك حیرا ن شو
درا فضیا نو دور ا وان شو
که څوك په ملك کښې یو شاه زلمی و ی
ت وره تر ملا کا و خت دافغا ن شو
* * *
پند مې په یاد شو د حکیما نو
یا ر ی به نه مو مې له غلیما نو
بنه یې په بند کښې د کر یما نو
نه په بو ستا ن کښې د لئیما نو

پوري پــه خو نــه دايمــل خــا ن شو
په سول د خونــې خان خــا نان شـــو
دا او ر کــه و نـــه مړ دا يم نا ري وهم
په وار ، وار پو ري په درست افغان‌شو
* * *
پـــه نظام پور کښې پـه سو سو ســو
قمر ی نار ي و هــی چـه کــوکو کــو
تل به د خو ړي په بـــڼ کښې نــه وو
وايـــی دا هســـې چـــه ځـوځــوځـو
* * *
پير ی پر ي يستم لـــه تا لا شو نو
هــا ی ښکليو ستر ګــو ښکليو غــا ښو نو
هغه خو ړل نشتــه هغــه لبد ل نشتــه
ولا ړ م لــه نو رو ښــو معــا شـــو نـــو
* * *
پيغــمبــرا ن وو شا ها ن خا نــا ن وو
ډېر خو ش الحــا نه (١) ښه ښه ځوانا ن‌وو

له دي جها نــه هســې رو ا ن شــو و
وايـــی چـــه کلـــه پـــه دا جها ن و و
* * *
تر سر تر پا يــه ککــړ پـــه غــو لــو
پـــه لا س نيو لـــې دســـته د ګــلــو

کښېنــی مستا نو تــه صفــت دميوکړی
نوم او ربــد لـــی چـــبر ي دملـــو

---

(١) په دوا ړو چا پی نسخو کښې ( ډېر خوښ له ځانه ) راغلی‌دی.

توغی حج و کړ په روم په شام شو
کور ته چه راغی په احترام شو
شیطان ګمراه کړ کوځی یې ونیوه
په هو مره چارې رسوا بدنام شو
* * *
ته قهقه خاندې غم تم په بل شو
غم تم په بل شو مل چه تل تل شو
قاتله ځله په کابو بویه
پرې باندې پا څه غر څه غافل شو
* * *
جهان په کام وی د وفا کیشو
قصد یې له چادی له بد اندیشو
عمل د ښو کاڼیء بلا تر ښو کاڼیء
ای بد عملو په بلا پیشو
* * *
چرګان نارې و هی سحر سبا شو
یار په ارمان کښې له ما جدا شو
غم یې هیڅیرې په عشق کښې نشته
د عشق په کار کښې رقیب بلا شو
* * *
چه په مړو ند یې با هو دخیال ؤ
ګو تې د زړو غمی یې لال ؤ
وګور ته ولاړ ل هغه لاسو نه
چه په حنا به لاله مثال ؤ
* * *
چه چا ته پیښ شی غم د خوړ لو
یا غم د ښځلو د اغو ستلو
نور نور غمو نه واړه تر شا شی
که دسند رو وی که دبد لو

چه خو شې ز ړه مې له تا اشنا شو
له وا ړه خلکه او س بې پر وا شو
نه یې خو ك یاد دی نه یې خوك هېردی
په بوی دما ؤ په خو ی دتا شو

* * *

چه دا دسا ښبنتن همه یو
که فهم و کړ ي لکه ز مه یو
مر ګك لکه شر مبن را باند ي ځغلی
د ر ب و فضل و ته په تمه یو

* * *

ځوانی یې و لا ړه ځنې ما یو س شو
باز دی غا لم ته خوشحا ل تپوس شو

شا ه د شطر نج د ی نژ د ې و ما ت ته
ور ته او س پا تې یو پیل منحوس شو

* * *

ښبنتن دمځکې یې داسما نو نو
دعر ش و فر ش او دجهانو نو

هاتی که ماشی کړې ماشی هاتی کړ ي
توا نېږ ي ر ب یې دد یو توا نو نو

* * *

خاند م په ز هد د فا سقا نو
خاند م په بذل د ا حمقا نو
چه نه یې د ین شو نه یې دنیا شوه
چا رې به یې نه وی د لا یقا نو

دا کـا ر سړ یو ز ده نه زده د دا نـــو
نـظر چـــه کا ند ی پـــه فر قدا نو (۱)
عشا چـــه و د ړی پـــه سـر د قطـب
جـو زا نوړ تـېر شی ا ی‌بخـر دا نـــو

* * *

دخپلـې خـو نـــې نغـن دخمـچـــو
نه چـــه غنمینـــه د بـــل پـه کـــو چو
نه او ر د خپـــل نغر ی د لمـدو پـچو
نـــه او ر د بل نـغــر ی دد ړ و و چـــو

* * *

دخپلې ګټـه ې په خد مـت خـم یـــو
پـــه نو رو نو رو فکـرو نو کـــم یو
سبا شـــی و خوړو بېـګا ه شی و خوړو
آدم صـــور ت یـــو د وا ب شکـــم یـــو

* * *

ډېـرو لیـد لـی د لیـــلا ر خـــت ؤ
ښو یـــه پر صو ف ؤ نا دید ه وخت ؤ
زه یـار مشفق لرم ، ده یار بد خوی‌درله
زه بختــو ر یـم مجنــو ن بـد بخت ؤ

* * *

را پا تې یو نه شو دو لس مې ترو نه‌وو
ولا ړ ل فنـا شو ل چه او لسونه و و
څه باُدشاهان ولاړل، څه څه خانال‌ولاړل
چه په در بار یـې و لاړ زرګو نـــه وو

---

(۱) فر قدا ن یا فر قد ین دشـما لی قطب پـه خوا کښې دد وو ستورو نوم دی چه له ما ښامه ، تر سهاره ښکاری (دکامل دیوان)

ژبه عادت کړه په ښو ویلو
چه دي عادت شی هغه تر تلو

که یې عادت کړي په بدګویی
مخ به دې تور کا تر پر دو خپلو
* * *

ستا تر لبانو خوند د شکر ورك شو
ستا تر دندانو نرخ دګوهر و رك شو

ستا تر چشمانو دملو خمرو رك شو
ستا تر مژګانو تیره خنجر ورك شو
* * *

سواری د جونو ده کده دا سونو
لا مې تري رسی توان د لا سونو

ښکار د تهو پك نشته‌که ښکار دباز نشته
دا هم پیري کړی په وسواسونو
* * *

سوګند مې ستا نه په سترګو تو رو
په زړه د ستا یم په خوله د نورو

پر پړ ده له هر چا سره یو مخ و ړم
له ما به څه وړی په کیسوسپورو
* * *

شکر په دا چه له نیسته هستشوو
عقل یې را کړ خدای پر ست شوو
رتبه به ګا نده په عمل موند شی
عمل کړیء و لې په همت پستشوو

شکر چه ز ړو نه په غم کښې ښاد لرو
دغم څه غم دی چه پیرا ستا د لرو

وایی چه ځان سا ته له غمه غمراغی(۱)
مو ښ خو غمو نه دا هسې یاد لرو

* * *

ښکلی د لبره د څوار لس کالو
خو له یې خو شرنګه حقه د لا لو
را غله زړو لا ړه زما ز ړګی یې
یو وړ په دوا ړو ستر ګو ملا لو

* * *

ښه ښه یا را ن وو ښه اشنا یا ن و و
چه په دو لت کښې راسره ځا ن وو
دو لت چه و لا ړ شو را ته یې شاکړه
جدا له ما نه په یوه نا ن و و

* * *

ښه و صیت د ی د بخر دا نو
یار ددا نو شه نه د بدا نو
بدا ن د ي ځا ن و ړی هم دي ایمان وړی
ایما ن خو خلاص کړه خپل له ددانو

* * *

فلك په قصد د ی د بې در دا نو
ولی و کا ږ ی دد ل سر دا نو

دموږ په نس کښی مرد لا علقه‌وی
تل پر ي پېر ي وی د ښو مر دا نو

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښې (راشی) راغلی دی .

کلی مې و لید ل دنا کسا نو
واړه په خوی کښې د ګر ګسا نو
ګو تی په هېڅا پسې دو ړو نه دی
خپل ګذ را ن بو یه همنفسا نو
* * *
که په دید ن ده دید ن هم ډېرو شو
که په خور د ن ده خور دن هم ډېرو شو
خوشحا له بس کړه و خت د عمل دی
لو ستن هم ډېرو شو ګفتن هم ډېرو شو
* * *
که چېر ی وار راغی ، بیا به خبری کړو
خلك به وير کا ، مو نږ به سندرې کړو
دا ډېر زنګو نه چه پراته په زړه دی
تمه امید لر و ګوند ې یې لېر ې کړو
* * *
که شور غو غا کا سړ ی تر تلو
پاز ه (۱) به نه ځی سره د خپلو
بد ی د ځپلو د بل تر ښو ښه ده
که څو ك پو هېږی په دا و یلو
* * *
که مو نږ ه وا یو وا ړه هېڅ نه یو
یو مو تې خا و ری ، یو چونګك او به یو
که دامجا ز وی تحقیق به بل و ی
سکه زړه به ښه کړ و هرګوره ښه یو

---

(۱) په دوا ړو قلمی نسخو کښې ( پاژه) راغلی دی .

که یار د ي سپین د ی و تا ته تورشو
که دصفت د ی هم د پیغور شو
نیك بد به وا ړه په دا پو هیږی
که ته هغه یي خو ی د ي اوس نورشو
* * *
مونږه به و مرو هسې پو هیږ و
یا را ن مو ږ لا ړ ل لانه کرو هېږ و
خا ند و خو ښی کړ و هوا هو س کړو
نه مو ژ ړا شته نه اندو هیږ و
* * *
مونږه میږ ی یو په مځکه کرځو
دنس له غمه و بله غور ځو
ښه وو په مځکه بلا را سا زه شی
چه پر پیدا کړ و اسما ن ته و رځو
* * *
مین مې را غی ، ملنګك په خیرشو
خبر پر ي نه شو م را باند ي تیر شو
چه سره نه شو و غا ړه غړ ی
افسو س افسوس دی ار ما ن مې دیرشو
* * *
نخښې خو در ي د ی د عا شقا نو
خو ب کا په مثل د غریقا نو
ویل په مثل دو یر ژ لیو
خوراك په مثل د ر نځو را نو
* * *
ښښتر که لو ی د ی له نور و و نو
چینار که پلن دی په پاڼو پلنو
لکه کما ل لر ی هسې ز وا ل لر ی
نظر پر ي کاږ ه د کما ل ښښننو

نوم مـې دبدو په خلـك خور شــو
که صاف ، صوفی یم وایی می خو ر شو
احداد دما شـی دهغــه نه شــی
چه له مستی هـر اند پـه خور شو(۱)
* * *

واو رې چـه او ری پـه سپـیرو خا و رو
خـا و رې سپین زر شی په سپینوواورو
په منـځ دد لــو په منـځ تېر ی کښې
سـمه غر سپین شو په سپینو واو رو
* * *

وخت د بهار را غـی خزا ن او س کم‌شو
مطـر ب په زېر مه د زیـر و بـم شـو
شرا ب لـه خمه را غلــه ښـېښو لره
کوزې کاسې را وړه خوشحال ډك خم‌شو
* * *

یابد تر ښو کړ ه د پر دو خپـــلو
یا غم تـه و ا خله تـو ښـه تر تلـــو
ددوا ړ و تو کو سو د و زیا ن خپل‌گورم
حا جـت هـیڅ نشـتـه نـور دو یلـو
* * *

یـا ری ښـې و ی د ښـو بخـر دو (۲)
چـه پکښـې نشتــه و هــم دبدو
دنـا کسا نــو یا ر ی د ، دد و د ی
سـو د منـــې نه وی یـــا ری‌د ، ددو

---

(۱) په‌دو همه قلمی نسخه کښې (دماشی) په ځای (زماشی) دی او هراند ، اراند لیکل شوی دی .
(۲) بخرد = هوښیار .

يو څه فراق د ی چه را بر سېرشو
ارمان افسوس د ی دا يوځه پېرشو
بيا به يې دور د ځوانۍ را نه شي
وار د دلبرې د زلفو تېر شو

(ه)

احمق په کلی کښې پيدا خدا ی مه کړه
که دې په کور کښې پيدا شی زده کړه
لا يې په لېرې ملکو نو و شره
يا يې له تورو خاورو سره کړه
* * *
اخيست چه نه شی په غاړې غرو نه
ورې د عشق د ی مو نږه يې وړونه
مست مست بارونه به مست مست اوښان وړی
غرض پرې څه لری غوايه يا خرونه
* * *
ارمان دی د ريبغه د ايو ځوز کاره
تل تل به نه وي تازه بهاره
تل تل به وار د ځوانی نه وی
تل تل به نه مومې مهر له ياره
* * *
ارمان د ی د ريبغه ز ما ګلزاره
غنچه ريژېږ ی او س له شاخساره
مڅکې! «طاهر» مې د ر لره درغی
بل رنګ يې مه کړه دخدای د پاره
* * *
اسمان پېږې لری زما پسره
مه ډېر غافل شه مه ډېر بې سره
په غم کښې تمه د ښاد مانی کړه
په ښادمانی کښې له غمه و يره

اسمان که نه کا خست د پناسیه
لکونه را شی د خوشحال ترلاسه
چه تار په تار یې په خلك نه کیا
تیه دا خبره له زړه وباسه

* * *

اند یښنې مه کړه ډیرې د رویشه
دنیا په نه موم مې تن قسمت پیشه
شکر غشی لره صبر در و یش لره
که کاهم دا دې کا هر چه شی پیښه

* * *

اوس بې وفا شول دا یارا ن واړه
د پلار په رای نه ځی فرزندان واړه
که نیك که بد دی په دا دستور دی
سره خپلوی نه کا اقربان واړه

* * *

ای چه دې نول دی زما له مخه
در قیبانو په بد ورخه
په عشق کښې مرداو سه پروا یې مه کړه
زه به دې نه کړم د چا په سبخه

* * *

ای چه سری یې په یوه ساه
که دې دا سا م نه وی نا گاه
هسې به پروت وې لکه مردار ده
په ځیان خبر شه دخیان گمراه

بار ك(۱) میـن د ی پـه دا دو ه تو که
پـه سپینــه واز ده پـه سپینــه رو که
بو لاق (۲) دو ینځې په خوی خصلت‌دی
ور لـــر ه بـو یـه لو ړ ه(۳) مترو که

* * *

با غـوا نچه کښېږ دی په باغ کښې‌ونه
تپا ك پر ې ځو کا تـل پـه سا تنــــه
که بر یـې ښه شی ز ړه یې پرې‌ښه‌شی
کـه بد شـی نه کـا با ند ې و تـنـه

* * *

بلبلـې خـه غوا ړ ی لـه ګلستا نـــه
ګــل به بیـا نـه مو مـې بې له خزانه
لکه خـو ښـی د ګـــل دو صـل و ی
غـم به یـې هـو مره وی بیاله هجرانه

* * *

بل تر خپل‌دست لره دچا تر دست‌مه‌شه
شرم پرست او سه شهوت‌پرست مه‌شه
چه کار دد ین ددنیـــا خراب پرېږ دې
هسې بـېخو ده د میـو ست مـه شـه

* * *

بل دې یو ځا ن غونـد ې را ته پیداکړه
ها لـه لـه ما څـه و ما تـه شا کـړه
ګنهـه دا کـو مـه یا ر ی خپلـو ی د ه
ما غـم تـه پر یږ ده ته ځا ن جـداکړه

---

(۱) دتری ختټکو یوه ځانګه ده .
(۲) تری اوبو لاق دختټکو دوې لو یې ځانګې دی .
(۳) په دو همه قلمه نسخه کښې (لویه) راغلی دی .

بله لمبه د ي د وصل ژ منه ده
بله مې عينې د ز ړه د ننه د ه
که دا دد خو لې د ى که نور دا دو نه
چه ښکليو نه زده کو مه نمنځنه ده
* * *

بې عيبه يار نشته په ملك هو ښيار ه
په عيب مه کړ ه زړه بد له يا ره
که ګر خې وا ړه با غو نه و ګو رې
ګل به بيا نه مو مې خا لى له خاره
* * *

يا رى له بد ه بد خو يه يا ره
شلو لې ښه د ه په خو اعتبا ر ه
که ښا يسته و ى چو ر و جفا يې‌وړه
ګلو نه کله و ى د با غ بې خا ره
* * *

پر ده پو ښې کو ه لکه پړو نى شه
اوا ر ه کړ و نى شه د هرچاوړونى‌شه
دحلم خو ى وا خله له بار دا ر ي ونې
چه خو ك دي وو لى‌مېو ه ورکړونى‌شه
* * *

پر هار پر ي باندې که دسؤزن نشته
عا شق شهيد د ى په داګنبې ظن نشته
د شهيدا نو جنا ز ه بو يه
دشهيدا نو غسل کفن نشته
* * *

پند د ې سو د مند د ى واوره‌توررزنه
آسا نه نه د ه د سر ښند نه
مصلحت مه پر ږد ه له خپله‌لاسه
هم‌به خپل را ز لر ي د ز ړه د ننه

پند دی کــه او ري زمـا پـښـر ره
پکښې فا یده و ینم زه سرا سـره
څو دي شرا ب شـته په قرا به(۱) کښې
خښیـنـه یـې خښوه یـې کار کړه تر سره
* * *
پور که دمړی د ی تښتـه لـه پـو زه
اور که لو ګی دی تښته لـــه او ره
دښمن کــه سهل ز حـمت کـنه لږ دی
بې غـم تـر ي مـه اوسه ای زما وروره
* * *
په باغ په راغ کـښې ګـلو نـه وا ړه
یـو ګـل به نـه وی بیـا تر اهـا ړه
هستـی دا هسـې نیستـی دا هسـې
ژا ړ ه حـیـرا نـې بـلبلـې ژا ړ ه
* * *
پــه با غ کـښې ګـو ره لا لـه ګلو نه
یا قـو ت پیـا لـې دی غوا ړی ملو نـه
ساقـی را پا څـه تـر داه پـا سه
بې میـنـو نشتـه تحـمـلـو نـه
* * *
په تـا کـه راشی حـا د ثـه لـو یـه
تـښتـه تسلیم و صبـر تـه بو یه
نه بـه یـې د فع پـه حـذ روکړ ي(۲)
نه پـه لښکرو پــه ز ر او زو یه

(۱) دشرابو ښیښه (کامل).
(۲) دپیښور په چاپي نسخو کښې دا مصرع داسې راغلې ده: نه یه یې
دفع په صبر وکړې.

په تاکه را شی ډېر محنتو نه
یا را حتنو نه فرا غتو نه
ته یې په نور چا حوا له مه کړه
چه ازلی دی دا قسمتو نه

* * *

په چا چه و شی د هما ی سیو ره
دو لت و ر درو مې له هر ه لور ه
مهر د خا صو دهما ی سیو ره ده
په چا به و شی دا سیو ره ګوره

* * *

په چېرته ولاړې دلو بو و خته
ته چا تا لا کړ ې د ځوانۍ ر خته
پر ې خبر نه وم یو او وه غلهوو
را ته په خو ؤ و شپه ورځ یکلخته

* * *

په خو غا فل یې غفلت نتلیه
له کار ه تهو له امل ایستلیه
هیڅ دې له مرګه اند یښنه نه شی
که جنا زې و ځی له هره کلیه

* * *

په حق و لاړ او سه ای نا صبو ره
صبر کړه صبر ، ده صبر تو ره
چه څوک په لاس کا ما امتحا نوکړ
فتح دا یم ده و ر ته حضو ر ه

پــه خو لــه خبر ي لـــه کړ د ګـــاره
پــه ز ړه خبر ي لــه کښت و کـــاره
فریاد فــر یاد د ی په هسې زیست کښې
تو به تــو بــه د ه لـــه هسې کـــاره
* * *
په درست جها ن کښې مې آشنا بیا نه مونده
څوك به یې څه غواړی چه مابیانه مونده
عمر مــې تــېر شو پــه آشنا یــی کښې
لــه چا مــې بوی دو فا بیــا نه مو نــده
* * *
په در ست وجود کښې ښه دی دو ه څیزه
یــو ز ړه بیــا ژ بـــه ز ما عز یــزه
ز ړه ښــه همت لره ښه خوی خصلت لره
ژ بـــه فـــصیحــه ر ښتینــې نیـــز ه
* * *
پـــه ز ړه دوا ړو خلکو ښکــخوا ه اوسه
هدایت کړ و نـــی د هـــر ګمراه اوسه
تمه له چامه کړ ه سخـــا پـــه هر چا کړه
بــې تخت و تــا جــه لکه بادشاه اوسه
* * *
په سفا هت د سفیـــه آزار مــه شـــه
و مکـــا فـــا ت تــه دده تیــار مــه شه
سپــی و مز ر یـــو و تـــه غــپیږ ی
کم تر مز ر ی ته پــه خپل وقار مه شه
* * *
په شر م ننــګ کښې ددنیــا ولاړاوسه
ددیــن پــه کار کښې ددنیـــا ؤ لاړاوسه
په خپلــو با غ شـــه رود رو د بــار شه
و بېګــا نه ؤ و تــه لکــه کا ږ او ســه

په شیخ رحمکار مې تا زه توبه وکړه
هغې نګا ر ې را ته ښېوه وکړه
زړه مې هر ګوره په اند ښېښنو شو
توبه مې بده ده که توبه مې ښېوکړه
* * *
په طور طور پیدا یو موږ ه
مښک یو عنبر یو ، بصل یو ، هوږه
شهد شکر یو ز هر ز قوم یو
روئین یو ،نیل یو ، نسپا ل یو،سوږه
* * *
په عدل و داد کښې په هر چا سم او سه
وقار هم دا دی تر نورو کم او سه
که ته په کبر د ځان لو یی غواړې
ګید ی(۱) دو ژ لو یې یو مار لږ م اوسه
* * *
په عطرو ږو به هغه خو شی رو یه
را غلـه نا ګاه لـه یوه سو یه
تما مه شپه یې را سره تیره کړه
سبې مې مې ډکې دی ددې لهبو یه
* * *
په غم کښې شو خه بنی آ دمه !
در باندې در شی خو خو ما تمه
شېر ین یا را ن د ې په مرګ جدا شی
سخت یې چه نه چو ې لـه ډېره غمه
* * *
په فتنو پو ره تو ر ه آسما نه
لا به دې کله شی دا خو نه ورانه
چه بل یو نوی جها ن پیدا شی
ګو ند ې خلك بیا مو می خلاصی له تانه

---

(۱) خر، احمق .

په قد چه نوم لري سرو خو لکه
په مخ چه نوم لري تمام اوږمکه(۱)
خوله دې حقه ده د سرو یا قوتو
په سپینو د رو ګو هرو ډکه
* * *
په ما خه کار لري درومه هو ښیاره
زه لیونی یم مینه شو د یاره
نه څوك ادیب لرم نه څوك طبیب لرم
درد مې له یاره دی دارو له یاره
* * *
په نیلی سپور یې قرره لکه
دعوا د کبر په زړه کښې کلکه
که فهم وکړې چینجی د غولو یې
هومره لویی کړې د غولو ډکه
* * *
په واك چه نه لری په کام کښې ژبه
که ګونګ شی ښه دی په لویه تیه
په بده ژبه ځان ځی جهان (۲) ځی
ایمان لا هم ځی واوره طالبه
* * *
پیری را نیولی له ما خو کاره
و لاړم د غشی تو پك له ښکاره
چه مهر مینه یاری تری غواړم
راپوري خاندی ځوانه نګاره

---

(۱) هلال .

(۲) دپښتو ټولنې په دوهمه قلمي نسخه کښې (پیمان) راغلي دی .

تا تــه چــه شمار كــا د چــا عيبو نه
چاته بــه شمار كــا دستا عيبو نـــه
دســخن چينــو مخــو نــه تو ر شـــه
پـــه مخ ثــنا كــا تر شــا عيبو نـــه
* * *

تا چه پيــدا كــړ ل هــو مره اقوا مــه
حــكمت د ي څــه د ی يــا ذ وا لاكرامه
تا چه پيــدا كړ ل حكمت يـــي تا ز ده
مــونږ ه هــيڅ نه ز ده پــه دا تما مه
* * *

تــا چـــه پيـــدا كړ ل هــو مر ه ملكونه
ربـــه پـــه تــا شـــی دا قـــدر تو نـــه
كــه تــا پر ي نه كړا ی دا با را نو نه
وا ړه بـــه هـــيڅ وو داسمـــي غـرو نه
* * *

تــا ز ه خبــر ي تـــا زه بهــار ګــنمــه
چه پــر ي ميــن دی هغــه هــزا رګنمــه
رنګـــ رنګـــ خبري‌دی‌رنګـــ رنګـــګلو نه
ګل د ګلا بـــو زما اشعـــار ګنمـــه
* * *

تــخم ضــا يــع كـــا بدا صله مځكـــه
نبــي پــی خــو ســا كا بد ه غــړ كه
هغــه چــه كر كــا يا پــی شار بی
هغــه د ي نه كــا دا پو هــه و ر كـــه
* * *

تر باز كــه لاند ي كړ ي دكارګه هويه
باز به را نـــه و ړی كار ګــه تري بو يه
كـــه دمز ری سره يار ی آغــا زه كــا
كو م خــو ی به وا خلی مزری نه‌سويه

تر سر تر پا یه ښکلی مخو نه
دا یو ، یو سف ؤ د پلا ر په خونه
پر مخ چه وو ینې زړه دې پرې خوښ شی
مخ هم هغه گنه کړ ه پرې سخو نه
* * *
تر سر تر پا یه لیلا ښا غلې ده
سینه یې ځکه د مجنو ن د ا غلې ده
مینه څه هسې اسا نه ، نه ده
چه دا بې ځایه په چا راغلې د ه
* * *
تر وړی په مکر مز ر ی په زور ز ده
غاز ی په توره وښبه(۱) په لور ز ده
ملا خبر ې په سپین په تور ز ده
د گنگو ژبه د گو نګ دمور زده
* * *
تل دکمز و ر ی وی دا یو خو کا ره
مکر د روغ کا په خو ا نکا ره
ښځه کمز و رې ده ځکه انکار کا
په دا سبب د ه هو مر ه مکا ره
* * *
تل سی سا له وا ی د خدا ی د پاره
گل ولا له وا ی د خدا ی د پا ره
دښو ښو جو نو جما ل تل تل لیدا ی
په لاس پیا له وای د خدا ی د پاره
* * *
تل کړ ه ښیگړ ه له آ د م زاده
نه ښه که وکړ ې څه کم و زیاده
در ته به خیر شی په سل بدی
هیڅ به د ې نه کا ښیگړ ه یا ده

---

(۱) وښبه = وانبه کوونکی .

تـل يـې خبـر ې له ښـه خورا کـه
ذکر مذکور يـې له ښه پـو شـا کـه
خـپل کسب هـيڅ نه ، واړه لـه ظلمه
هــی تو بـه ، تو بـه له هسـېژواکه
* * *
تــن د ې پـه مـثل د رو ح قبــا ده
لکـه ا غـو ستـې چـه قبـا تــا ده
دا دوا ړه تو کـه فــنـا پــذ يـر د ی
فنـــا يـې نشتـه د رو ح بقـــا د ه
* * *
تـن يـو غلاف د ی ز ړه په کښې توره
د تـو ر د سپين نه ده و ينـا منـظوره
مـدار پـه تو ره دی ، پـه غلاف نـه دی
چـار يـې پـه هر چا ده مشهــو ره
* * *
تـه دا وينـا کـړ ه له ما نـه يـا ده
بـهره اخلـه د بـهار لـــه بـا ده
لکـه دا بـا د يـې په وا ړ و و نو کـا
هسـې بـــه ستـا کا د رو نـه ښاده
* * *
ته معشو قـه يـې پر وا د ې کو مـه‌ده
زار د عاشق د ی چـه چار يې‌شومه ده
بـې تا کيا ب وی پـه اور ور يتـيږی
چـار دې د هجـر دا ور معلـو مـه ده
* * *
تـه يـو طلسـم يـې بـې اعـتبا ره
لـــه خا کــه با ده لـه آ بـــه ناره
اول هـم هيڅ و ې بيـا بـه هم هيڅ‌شی
پـه ځـا ن خبـر شه د خدا ی د پـا ره

تیر امې و لیده را غلم ترسواته
پښتو نمې و لید دا لوی‌لوی ذا ته
عقل همت مې د چا و نه لیده
په بېرته را غلم نا ست یم ملا ما ته
* * *

ثنا صفت کا عا لم له میوره (۱)
نقش و نګار لری په خوځو طوره
نظر چه وکا و خپلو پښو ته
زړه یې اخته شی په ډېر ډېرځوره
* * *

جفا د خلکو هر ګوره ډېره شوه
که څوك ښکنځله وکا و رته دعاوکړه
که آدم زاد یې خوی د آدم را وړه
غمجن چه وینې باندې ژړا وکړه
* * *

جفا د خلکو هر ګوره ډېر شوه
وفا د هر چا له د له هېره شوه
وخت د قیامت شو که نور آفت‌دی
یوه بلا ده چه را بر سېره شوه
* * *

جن په حجاب کښې د مور له څنګه
مګر ځان زغوری دمور له چنګه
که په صحرا ګرځی که کوځه ګرده‌شی
شنده به وکا په خپله ننګه

---

(۱) میوره = مور ، تا ووس .

چې هو مره ښه ده چه مهر داره ده
د پیلار په کور کښې نا سته قراره ده
چه دجن وا لی د فتر یې تېرشو(۱)
که صاحبی کا بیا خدمت گاره ده
* * *
چا ته به راز وا یم چه مې راز دار نشته
غم به مې څوك اخلی چه غم گسار نشته
کیمیا به بیا مو مې و فا به نه مومې
هزار یاران لرم یو وفادار نشته
* * *
چار دخوانۍ د فسق فجو ره
له لاسه و لاړه لکه ښه تو ره
اوس مې دا زهد چه د پیرۍ دی
کشکی یې چار وی هو رې منظوره
* * *
چار د مر گو تې معاینه ده
ښه ترژوندون نه هر آئینه ده
پښتنې ما ته کا آئینه سازه کا
چه تر تبی نه ښه آئینه ده
* * *
چار یې په هر چا باندې ښکاره ده
د گل یا بوی دی یا ننداره ده
چه نه یې بوی وی نه یې ښه رنگ وی
گل به یې نه بولم د چار پای چاره ده
* * *
چې ته غره و لاړ یې په باد مغرو ره
حباب ته گوره بلا دې دوره
نیستی هستې یې فنا کېدل دی
واړه ستا چار ده در ته حضوره

(۱) په دریمه قلمی نسخه کښې د(تېر)پهٔ ځای (خور) راغلی دی .

چو ز با ز چــه و وینی د جا ل کو تره
پــروایـې‌نه وی لــه خپلــه ســره
لــګر کــه هــر څو غــو ټــه تېره لری
نــه برا بــر ه بیــا لــر ه بــر ه
* * *
چــه با د شا هــا ن دی خانان دی ورورہ
نور څــه ـ یــې مه ګڼــه بې بــله او ره
کــه سور مز ر ی یې که تور ها تی یې
خــپل ځا ن له بلــه او ره نه ژ غور ه
* * *
چــه باز د ې و لاړ شــی چېر ی له دسته
پــه غر ه په سمه کړ ې ور پسې‌مرسته
هنــر هــم هسې یو یا غــی باز د ی
طلب یــې نه کړ ې په هــمت پستــه
* * *
چه بخیــل کېږ ې هســې ساتل مه‌کړه
چـــه مسر فېږی دا هســې تل‌مه‌کړه
خپل خوان په هرچا خوره‌منت په‌چامه‌کړه
دبل وخوان ته خا لی کتل مــه کــړ ه
* * *
چه بد ې چــا رې نبیــی و چــا تـــــه
هغــه ســا ز بـړ ی بـــد ې بــلا تــه
چــه کار د کــړ لو و ې پــکښې کاهل‌شی
تــر دا بد خو ی نشتــه د و یم‌وماته
* * *
چه بد یې ژ وا ك و ی بد یې رنــګو نه
نــه مصلحت لر ی نه آ هنــګو نــه
نــه ډېر دو لــت لری نه ډېر عز ت لری
لــه هغــو څــه غــوا ړې شر م ننګونه

چه بل خبر کړي د ز ړه له را یه
هښیار په څه یې و ما ته وا یه
هر چه هو ښیار و ی هنر یې دا دی
خبر ه نه کا چا ته بې ځا یه

* * *

چه پا ك ز وو لی- دی له مو ره پلاره
نا پا ك یې مه کړ ي پر وز د ګاره
دین و دنیا لر ه پا کی په کار د ه
نا پا ك به خوار وی په دوا ړه‌داره

* * *

چه په قر آن کښې د ي منلی وا ړه
مشکو ت مصبا ح ته نیو لې غاړه
نفس د ي په دا کښې که فضو لی کا
شیطا ن خوار کړ ی بد بخته ژا ړه

* * *

چه پکښې لو ی شی بې مصلحته
خو نه خا لی شی له بر کته
تر بد بخت زو یه نېکبخته لورښه ده
فر زند دې نه وی بې سعا د ته

* * *

چه په وار وار یې له ما نه بو ته
زما خو بی یې په چېر ته بو(۱) ته
پیر ی و کړ ي را بانـد ي چا ر ي
فو لا د ی تو ره یم خوړلې پرو ته

* * *

چه تجلی وو هغه مخو نه
سپېر ي ایر ي شو ل د ګور په خونه
دصورت و نه نا بوده و نه د ه
هم یې ښا خو نه ځی هم یې‌وښخونه

---

(۱) دپښتو ټولنې په دوو قلمی نسخوکښې (توته) لیکل شوې ده .

چه ته پړو وینې په ستر ګو واړه
بقا یې نشته باندې مه و یاړه
هغه چه تا وینی هغه باقی دی
فا نی به څه کړې باقی و غوا ړه
* * *
چه خبر دار شوم له دې جها نه
څه مسخرې کا په هر چا جا نه
هوښیار لا هو مره په ځان خوښ نه وی
لکه نادان کا خوښی له ځا نه
* * *
چه را ښکاره شي په خو خو طوره
خو خو فتنې لري خو هو مره زوره
بل فکر مه کړه بل ګو ما ن مه وړه
فریاد مې واوره دی دیار له جوره
* * *
چه د شیخیه نمط لرینه
شېخی دې کا ندی په زیره سپینه
ځوانی به و لې ابته ځینه
ښه مخ دې ګوری شراب دې څښینه
* * *
چه د رسره کښ ښنی یو خو شیطا نه
یا را ن به لېږې کړې له خپله ځا نه
سود به دې نه وی بیا به ار ما ن کړې
ار ما ن به یوسی تر ګو رستا نه
* * *
چه دې په زړه دی هغه په خو له لره
چه دې په خو له وی هغه په زړه لره
دا دوا ړه تو که لکه مری
په یوه تار یې پېیلې ته لره

چه ډېر و یــــل کـــا په ډېـــره ژ بــتــه
څو یــې چه ژ بــه هو مره یـــې تبـــه
دبا غ بلـبلـــو و تــــه نـظر کـــا
پــه خپلــه ژ به د قــفس طــا لبـــه
* * *
چه ز ړه ژوند ی لری د عـشق په مینه
هغـه که و مر ی ګنهـه نـه مـر ینــه
فر هـــا د که مړ دی مجنـــو ن که مړدی
نــو م به یــې هر کله په جهان ؤ ینــه
* * *
چه زړه فا رغ لری لـــه مکرو ریبـــه
هغـه بـــه مو می نصر ت لـــه غیـــبـــه
دبل پـــه عیـب نـظر ها لـــه لره
کـه ځـا ن د ي خلاص و ی له هرعیبه
* * *
چه زړه مي وینې پــه طــناز ی شـــه
پـــه څو څو رنـګه په عشقبا زی شــه
چه نه مي غو ره کړې په هو مره ښکلیو کښې
رحمت زمـا پـه نظـر بـا زی شـــه
* * *
چه زه یـــې ورو ستـم نیژ دې وګورته
بیا یـــې چه زا وستـم ددنیـا کور تــه
له سختـه رنـځه یـــې تند رستی راکړه
ګنـؤ ره سا تی مـــې بیا کومشر(۱)شورته
* * *
چـــه ستا په دین نه و ی معدو م یې وګنه
چـــه څه تر ي زده کړي مخدو م یې وګنه
حرص شو مــــی لری څوك چه حرص کا
حضرت ویلـــی د ی محرو م یـــې و ګنه

---

(۱) په دو همه نسخه کښې ( سپرټور) راغلی دی .

چه سل په زړه لري يوه په ژبه
هغه دي پر هوځی په لويه تبه
چه زړه او ژبه سره يکرنگ لري
هغه به خلاص شي له معايبه

* * *

چه ښه زو ولي وي له موره پلاره
ښه تنسته لري سپينه چو تاره
که باندې خيري يا تهکي پر هوځي
پاکېږ گي ده ورته تياره

* * *

چه عاشقي کړې پېغور قبول کړه
دواړو خلکو شر شور قبول کړه
که ځوك دي اچوي و سرو لمبو ته
ديار د پاره سوز او ر قبول کړه

* * *

چه عاشقانو دحق ديدار ليده
موسى په وه منصور په دار ليده
جلوه يې وکړه په بايزيد کښې
د تېرې توري په مخ عطار ليده

* * *

چه عاشقي کا پرېږدي ننگونه
قبول کا توري تو بري جنگونه
خپل زړه خالي کا ديار و مينې ته
له زړه نه و اخلي نور نور رنگونه

* * *

چه علم وکړي عزيزه زويه
فهم په علم په عمل بويه
کمکيه و نه بار دا ره ښه ده
نه پلنه و نه بې باره لويه

چه غم يې نه وی له نا حقه خو نه
او ر به يې ولگی په در ستـه خو نه
نيست نا بو د به شی په دا دنيا کښې
هـو ری بـه پا ځی تور تور مخو نـه
* * *
چه کار يـې بيا يـی فلك په کښتـه
چا ر ې بـه کاند ی بـې مصلحتـه
کجير کـه ځير د ی چه بې تد بيردی
په خز ه بنـد شـی لـه دې شا متـه
* * *
چـه گـل د با غ کا خنـدا بنيـا ده
بـلبلـې ژا ړ ی پـه ډېـر فـر ياد ه
څو ك پـه خنـدا کړ ې څوك په ژړاکړې
دا چـا ر ې ستـا د ی دسبـا بـا ده
* * *
چـه لال اسا دی پـه دوا ړه لـب دېوه
چه سمن سا دی پـه سپين غبغبدېوه
وخت دسبـا شو پـه بور جل زر را ځه
زما پـه هو مـره يا رب يا رب د ې وه
* * *
چه لېر ې بـا سـی تـا لــه دا دا ر ه
نـفس دی شيطـا ن دی دنيـا ده يا ره
دوستـی د خلـکو د ه ځـلـور مـه
د ځـا ن بلا دی وا ړه هـو بنـيا ره
* * *
چـه مستغنـی شی لـه شا ه و مير ه
کـه در تـه بد وا يی که بنه پـه ځيره
که هـيڅ پر وا د ې و ربا ند ې نه وی
مرد يـې رحمت د ې په وللـې ډ يـر ه

چه مستغني وي له نصيحته
هغه به نه وي بې قبا حته
يا به احمق وي يا به بد ذات وي
يا به محروم وي له ښه دو لته
* * *

چه ورته گرځي په ډو ډه ډوډه
با غکه ور شي اخر تر کو ډه(۱)
لوی په مکان د هو ډ ي ځان بيا يي
خوشحال له ماوره له خپله هوډه
* * *

چه هر زمان مې په زړه ميشته ده
هغه مهرو يه د زړه دمه ده
خدای خو د ي صبر له دې رانه کا
د صبر بخره که هر څو ښه ده
* * *

چه يې کاسه کړه دمجنون ماته
مينه يې لاشوه په ليلا زياته
جور د ښکليو په معنی مهر دی
ښکنځل يې ښه دی ډير تر نبا ته (۲)
* * *

چه يې لرزه وه په ملك له جيشه
زړه يې شا دکام ؤ له هره حيشه
گوره په گور کښې هغه شاهان دي
چه رغ يې نه شي دمرگ له طيشه
* * *

---

(۱) دا رباعي په دوا ړو قلمي نسخو کښې نشته.
(۲) په درېمه قلمي نسخه کښې ( ترښه نبا ته ) راغلی دی.

چه يې مخمور ي وې سترګې بې مله
سنبل يې هيڅ وو تر ښه کا کله
وګور ته و لاړل هغه مخو نه
چه ښا يسته و و د باغ تر ګله

* * *

ځار شم بلهار شم د يار تر نامه
ديار تر خط تر ښه پيغامه
باد چه را وا لوځي د يار له لوريه
ور سره وا وړی خو ښی تمامه

* * *

ځنګل ته اور را وړه حکم ته زور را اوړه
لښکر څو ډېر لرې لا هومره نور را اوړه
دا دودهش کړه غريب نواز او ښه
چه مفسدان دی پر ې شرو شور را اوړه

* * *

ځوا نمرد که نه يې له مانه فن زده کړه
بخښل د جرم خورول د نغن زده کړه
چه را غله را غله چه ولاړه ولاړه
خوی د ښيانه منو ، نه دغم جن زده کړه

* * *

ځوا نی دې را کړه له کا مرانی سره
پيو ند دې را کړه له پريشا نی سره
بيا به مې څه کړې په دا خير نه يم
چه مې ژوندی سا تې له حيرانی سره

* * *

ځوانی که ګورې لکه سره زر ده
تر سر تر پښا يه واړه هنر ده
که هر څو ښه يې عيبو نه لري
(پيغمبرای ده) واړه وخيبلو نو نظر (ده

خوا نی که هر خو یو نو بهار ده
چه درو مې تله کا بیا څه په کارده
په اور کښې و سپېز ه د ګلابو ګل شه
چه بوی د ې پا تې شی دا چارپه‌چار ده
• • •
خوا نی مې و لا ړه په غفلتو نــه
په عشر تــو نه (۱) په شد تو نــه
لولی چه زا له شی(۲) تسبې په لاس‌واخلی
جسې مې اوس د ی دا طا عتو نه
• • •
څو تجر بــه نه کړ ې خپل زړ یه وړونه
هــو هر ه دد یــو په کار مه مــونه (۳)
زړ یـه ځـــه د ی چه ځان څر ګند کـا
ګـنـه بهتر د ی له زړ یـه لــو نــه
• • •
څو چه تــوا نېز ې خــو ښا مو شی‌کوه
عیب جــو یې مه کړ ه پر ده پوشی‌کوه
په زړه زا هد او مـه تنـهـا عابد اوسه
فتــوا مــې وا خلـه پا ده نو شی کو ه
• • •
څو چــه توا نــېز ې له هیچا بدمه کړه
څوک چه ښه کېږی باند ې حسد مه‌کړه
که یې او به ې ړی که یې لمبــې سو زی
زړه سو ی په مار پــه لړ م‌په ددمه کړه

---

(۱) په دوهو ډ چا پی نسخو کښې (عسرتو نه) راغلی دی .
(۲)ــ په دو ه نه قلمی نسخه کښې ( زړه شی) راغلی دی .
(۳) موهل = ویارله ، فخر کول (ظفر اللغات ) .

څوچه تـــزوا نېږي هو مرد نا قنع اوسه
تـــل تـــل دتبکو د خصلت وا ضع اوسه
سو د يــې تر جود تر کرم د پا ســه د ی
دخــدا ی د پاره مشــوا ضع او ســـــه

• • •

څو څو فکرو نـــه څو څو اشـــو بـــــه
زړه مــې په غم کښې ستړګې بې خوبه
داخــل مــې و شو ه په مغ کښې سو بــه
نور تــو به تو بـــه لـــه مين تــو بـــه

• • •

څو د ې پـــه مغ دی تسلسلـــو نـــــه
ســا ز و نا سا ز د ی وا ړه ګــلو نــه
دعا شقــا نو تر مرګ يــتـــر د ی
د مهـــو شـــا نـــو تغـا فلـو نـــه

• • •

څو د ې دو لت شتـــه هـــو مره عزت شته
څو دې صحت شته څو مر ة را حت شته
چــه پيرِ ی را شی دوا ړه په مغ و ړی
کــه د ې دو لت شته که دې صحت شته

• • •

څو ك دی چـــه وا و ړی لـــه بد ه کاره
څو يــې وانه ړ و ې پـــر ور د ګـــا ره
تو به ها لـــه بنســـه ده لـــه تو به ګاره
چه تــه يــې تينګك کړ ې پر وردګاره

• • •

څوك چه توانګـــر شی په قنا عت سره
افـــلا س يـــې نشتــه پــه روايت سره
حر ص د پــرشو م د ی حريص محروم دی
نظر که وکړ ې په حد يث آ يت ســره

خوك چه خبر شي د خط له خونده

قلم به ونه ز دی په حرف بې بنده

شما ره د نورو حرفو هو خو کښېږ م

چه یو الف د ی په در ي پیو نده

* * *

خوك چه قانع دی مخدوم یې وګڼه

خوك چه حريص دی محروم یې وګڼه

که و رورکه زو یه که خبښ که دوصبت دی

چه ستا په رای نه وی معدوم یې وګڼه

* * *

خوك چه مر دو د شی له پیره میړه

خالی به نه وی له غمه و یره

زړو نه چه زړونه دی لکه ما راندی

زهر مهره لری په ځان خبیره

* * *

خو مره دي خوا ده وها ته د کښه

چه تشو ي یې په ما فلکه

هم دي پیر ي کړ ه په ما تعیینه

هم دي میړ خی کړ ه دمغل را لکه

* * *

خو مې له تانه در نه سینه ده

هنوز مره مې دي سره ډېره کینه ده

چه و رته وګو ري فتنې په لاس واخلی

چه ته یې مسته کړ ي ستا آ ینه ده

* * *

خو نعمتو نه تر سر تر پا یه

چه تا موندلی د ی له یو ه خدا یه

په هر ه ساه یې شکر وکه نه

که غنا فل نه یې ثنا یې وا یه

څه ښه مې بیا مونده معنی له جاهه
که جاه باله شي بد دی تر چاهه
په جاه به هېڅوك غلطی نه کا
بې له احمقه بې له ګمراهه
* * *
څه ښه بادشاه وي شاه جهانه
هم غور رسه هم قدردانه
چه ته یې بند کړي زو یه دې نه دی
یوه بلا ده پیدا له تانه
* * *
حق دخپلوی د خپل په زړه کړه
که هر څو بد کاور سره ښه کړه
په هر سلوك چه پر دی خپلېږی
سلوك هم هسې ور سره وکړه
* * *
حیران یم یاکه پروردګاره
تا چه پیدا کړل داد واړه داره
محتاج هېڅ نه یې د څه د پاره
دا هو مره نقش هو مره نګاره
* * *
خبر چه نه وی د عشق له کاره
په هغه کس وی یاری دشواره
بې یاره عمر څه عمر نه دی
زر دې په ګور شی سړی بې یاره
* * *
خبر هېڅ نه وم چه دا افعال شته
د پلار له زو یو سره دا حال شته
لکه عابد وکړه یابد فرجام وکړه
داحال په هرچا دی که په خوشحال شته

خبر هیڅ نه وم چه و رځ و ه تـر مـــه
چـه ز و وم سعـد و ه کـه نحسه‌شومه
غمـه  په چـېر ته غلط غلط د رو مـــې
غـر ض په ما لر ې د لـــې را د رو مــه
* * *

خبـر هیڅ نـــه ی م له خپلــه حا لــه
حا ل مــې به څه کړې یا ذوا لجلا لــه
تکیـه مــې ستا ده ستـا د کـر م د ه
دایم در تلــو نی شو م ډ ك لــه و باله
* * *

خپل خپل فعاو نه د سړی ر هبر ګـڼه
په خپله پو هه‌کښې قا بل یو هر ګڼه
چه خیر غوا ړ ې خیر به بیا مـو مـــې
چــه شر طلب و ی بخر ه یې شر ګڼه
* * *

خپلـــه خبـــر ه د ه مـــر غلـــر ه
بــې فکـر ه مه و ا یــه خپلـــه خبر ه
پنــد مې په یاد لر ه که مې نیکخواه‌ګڼې
څو چـــه تو ا نـــېږ ې خــبر ه نــغر ه
* * *

خدای پــه خدا یی ښا یی چه هو مره مینه
دد و ؤ پــه منځ کښې هسی کېږ دینــه
پــه هسې شا ن یـــې وبلــه مین کـــا
چــه ځبلـــه ځـا ن و جها ن ښند ینه
* * *

خدای دې اضغاث (۱) کاداوران خو بو نه
چه او س یـــې و ینـم په آ شو بو نــه
درو م لښکــر ې په هند و ستان راغلې
نسکـو ر دشا ه دخیـمې چو بـــو نــــه

---

(۱) غلط او ګډوډ خو بو نه .

خدا یه دا کار مې تر انجام راوله
تللی مین مې تر مقام راوله
نیولی باز مې له دامه (۱) ووت
بیا یې په ښېر ته تر دام راوله

* * *

خدایه در د من کړې بې دردان واړه
چه وا ړه ژاړی دما په غاړه
خوشحال له ملك دبې دردو ډك شو
در د من په نورو ملکو نو غواړه

* * *

خزان بد باد دې حد ر تر ې بو یه
پاڼې د هر ې ونې کا تویه
بهره اخله د بهار له باده
تا به د ونې په رنګ کا زویه

* * *

خزان و هلیه د له نا ښاده
غافله مه شه له دې ارشاده
وخت دبهار شو بیا به ارمان کړې
بهره نن و اخله د بهار له باده

* * *

خسیس دې پر پرن دی په دوه پشیزه
هلك د ې پر پرن دې په دوه مویزه
که ته دانایې زړه به پرې نه تړې
یاری ددوا ړو ګنه نا خیزه

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې (له جاله) راغلې ده .

خلك په ما کا کینه هم رخه
که خدا ی مې نه کا دچا په سخه
بېل شو م له یا ره ژوند ی لا پا یم
څو ډېر شر مېږ م د یار له مخه
* * *
خوا ره حیرا نه بنی آ دمه
په هیڅ غمجنه په هیڅ بې غمه
خاند ې وژا ړ ې وژاړې خاند ې
دا چار د ې تل ده له عمره سمه
* * *
خوا ره حیرا نه بنی آ د مه !
چه د ې خمیر د ی خاورې له غمه
یو دم که و خاند ی په دا دنیا کښې
بیا د ې ژړا و ی په څو څو دمه
* * *
خوبی دعمر تر چل و پنج د ه
که غا ښ که عشق وی تر شسته ګنج ده
که غاښ دې نه و ی سترګې دې تتې شی
نور مره که نه مرې پیر ی دې رنج ده
* * *
خو بی دعمر تر خلو ښښت کا له ده
چه په ځوانی کښې ما له ما له ده
حواس که درست لر ې شکرو کا ږ ه
څو دې و دا نه د عمر ځا له د ه
* * *
خورا ك پو ښا ك دسړ ی دا دوا ړ ه
څو ښی یې ګو ښې خپل ځان ته غواړه
ښه ښه ځا یو نه ښه ښه با غو نه
په دا چه و شی شر یك دی وا ړ ه

خو ږه مې ی ده که خو ږه ژ به
چه څوك پرې خپل کړي زما صاحبه
هنر هم دا دی که دا هنر لري
چاږ به د ې تل و ی تر سیا ل غا لبه
* * *
خوشحا ل ته مه ګوره ګو ګل یې ګوره
ډ ك دی د بلو لمبو دا و ر ه
که شین مزر ی یې که مست ها تی یې
خپل ځا ن له بلو لمبو نه ژ غوره
* * *
خوشحا له چا ته ، وایې پندو نه ؟
خلك خوشحال دی په خپل سندونه (۱)
که زړه د ې وار کا ژ به قرا ر کړه
مات د ی دپند دې بار ی (۲) بندو نه
* * *
خوشحا له زو ړ شوې نوره ځوانی مه کړه
بې زر او زو ره حکمرانی مه کړ ه
چه در سره دی دام او ددا ن د ی
له دا م او دده زندګا نی مه کړ ه
* * *
خوشحا له مخ کړ ه و ښو کسا نو ته
شا کړ ه نا اهلو بو الهو سا نو ته
شکر ې تو یې کړه وشنو توتیا نو ته
مر دا ر ه وا چو ه وګرګسا نو ته

---

(۱) سند = اتفاق .
(۲) په در یمه قلمی نسخه کښې (باړی) دی .

خوشحال له مه کړه ددنیا غلــه
څه در تـه وایم پـه خو خـو غلــه
نه به زیـا تـیرې نـه بـه کمیـږې
هـر چا موند لی و پـښ لـه ازلــه
* * *
خوشحال لـه مه کړه ماته له چا نـه
فکر پـه زړه کښېږ و کړه ای جانـه
پـه تا چـه کـیږې دا هومره چاری
بـلا دې وا ړ و ه لــه خپله ځـانـه
* * *
خوشحال لـه مه یـې په زوی وا لی ویاړه
هـم ځنـې مـهر و فا مـه غـوا ړه
هر چه زو ولی دی دتو تیا(۳)له نسه(٤)
د پـدر کشو پـه بـوی دی وا ړه
* * *
خوی دخوشحال راوړه پهزړه خوشحاله اوسه
پـه زړه حلال اوسه پهخوله حلال اوسه
مین پـه شرم دښمـن دمـا ل او سـه
دنور چا مـه شه د ذوا لجلا ل او سـه
* * *
خوی یـې د ښـو شو بی‌بی زاهده شوه
تل په تسبیح په او دس ساجده شوه
دلاس پـه وللو مړ ك د تهلیـل شــو
دمـخ پـه و للو پیشو عا بـده شـو ه
* * *

---

(۳) توتیا دخان دمشرې ښځې نوم دی .
(٤) په دوو قلمی نسخو کښې (نفس) راغلی دی .

دا اکرا مو نه دا انعامو نه
دچا په یاد دی هسې کا مو نه
په بوی د میو مست شم صوفی یم
ساقی را سر کړل ډک ډک جامو نه
* * *
دا چار تر نمره لا مشهو ر ه د ه
نور څه یې مه ګو ره دمرد چه تو ره ده
دمرد تر تو رې دا ښه ښه د ه
که ستر پو ښه پا که مستو ره د ه
* * *
دا چار خر ګند ه په هر د یا ر د ه
بد ی ښېګړ ه د یار د یار د ه
دز ړه د یار مې خا لی له غیر د ی
پکښې د لبر ه د یا ر د یار د ه
* * *
دا خا و رې نه دی چه مو نن پرې څو نه
د خیا ل زلمی د ی ګل ګونې جو نه
ګو ره له کو مو خا ورو به ګله شو و
په هر زما ن د ی دمرګ پېچو نه
* * *
داسحر ګر ه دنیا مکا ر ه
زو یه و بزار کا له مو ره پلا ره
چه یې له مو ره پلا ره وبزار کا
هسې دا هم شی څنې و بزا ر ه
* * *
دا سبز ګلو نه ګو ره خو شحا له
ګو ره چه څه شی تر بله کا له
لکه چه ګل دی هسې ستا عمر د ی
را شه خبر شه له دې مثا له

دا فانې چارې فانی دی واړه
یوه باقی ده باقی و غواړه
مولا په یاد لره زړه په دا ښاد لره
په دا ښا دی کښې همیشه ژاړه
* * *
دا منصبو نه دا انعامونه
واړه زندی دی واړه دا مونه
پښتون مغل به سره دوستان نه شی
خو شحال یې مه وینه دا اکرامونه
* * *
دا یم زه تیر شوم ترا و یا کاله
ته را خبر یې یاذوا لجلاله
دا غم مې نه دی له اعدا(۱) لید لی
لکه یې وینم له خپله آله
* * *
د با بازو یه ! دبابا پلاره !
په زلفو لیله په مخ نهاره !
یوسف که هر څو ښایسته روغ ؤ
یو یاسمن ؤ ستا له ګلزاره
* * *
دباد شاهانو نمنځلی واړه
تر هر چا هسکه کا خپله غاړه
که اصل نه لری اصل پیدا کا
که عقل نه لری عقل تري غواړه
* * *
دپا سه نه شوه داچه دلاندې ده
بلګل به نه کیده چه دا دسپاندې ده
مه تري حیا غواړه مه تري وفا غواړه
هغه لندی ده لکه دوړاندې ده

---

(۱) اعدا = دښمن .

دچا پــه مر ګــك شــی خو نــه میرا ته
زما بــې مر ګــه شو ه لا ته پــا ته (۱)
ښــه چه دا هسې شو ه زه هم پرې خوښ یم
چــه لا را نــــه شو ه دا بــلا ز یا تــه
* * *
دچا چــه ډ ك وی زړ ګــی لـــه را ز ه
کــه پـه و یل یـــې نه کا خوله وا ز ه
یا یـــې له خو لـــې نه څه بو ی روان شی
یا بــه یـــې رنګ وی دمـــخ غـــما ز ه
* * *
دچا نا حقه لــــه پـیر ی ، و پـر ه د ه
پیــر ی ایــما ن ده ځوا نی کا فره د ه
شکر و کا ږ ه خو لا ځـوا نی لـــر ی
که د ږ تــــه نا سته نو ې د لبر ه د ه
* * *
دچا نا حقــه لــه مر ګــه و پـــر ه د ه
دا چـــا ر کــه ګو رې هر ګوره غوره ده
زر ګــر وښی مات کا او ږ ی ، ساز ه کــا
لا تر و ښـــی نه او ږ ی ، بهـــتر ه د ه
* * *
هچـــا و خوا ن ته خا لـــی کتل مه کړ ه
که تل د ې خوا ن خوری منت په بل مه کړه
چه پر ې با ور ځـــی هسی و یل مه کړه
چــه ما ل د بل شی هسی ساتل مه کړه
* * *
د خپل بــد خوا ه سره پــه تیغ باز ی کوه
نه چــه ښکنـــځل یا غــما ز ی کـــو ه
ژ بــه خو ندی لر ه د بــد ګــو یـــی
پــه حــق راضی اوسه سر فرازی کوه

---

(۱) ګډه و ډه یعنی لته پته .

دخپــل پــدر سر ه د خپل پسر سر ه
دپیــر استــاد سر ه دیوه هــر سر ه
خپلو ی کــهـ مینــه کــه محبت کــړ ي
په سو د نــاظر لر ي نه د ضر ر سر ه
* * *
دخپــل غلیم‌ســر ه په تــو ره‌جنګ کړه
نه چــه ښکنــځلــې د ښځــو رنګ کړه
پر هار پــه ز ړو نــو د ژبــې مه ز ده
دنــا مرد ی لــه کا ر ه ننــګ کــړ ه
* * *
دخلکو ځکــــه د پېــر ی و پــر ه د ه
پیر ی تر مر ګــه په ژو ندو ن تېر ه ده
درد چه‌په ځان را شي‌ها له پر ي پوه‌شي
په درد مــې خپله سبــینه خبــر ه د ه
* * *
ددنیــــا مینــې ، یــــا ر ی وا ړ ه
بقــا هېڅ نه لر ی باند ې مه و یــا ړه
چه بــه یــې ژا ړ ې پــه جــدا یـــی
جــــدا چــه نــــه دی وا ړ ه و ژا ړ ه
* * *
در پســې و لو ښتم مه کړ ه پــو ښتنه
هســې به نه و ی د چا لو ښتنــه (۱)
بار خو د ې ګــل د ی و ما یــې را کړه
مذ مو مــه نه ده دګــل غــــو ښتـنــه
* * *
در ته بــه څه وا یم کار د خلیل ګوره
پــه سو ویــې و سا ته دا ور دلیل‌ګوره
سبطی یې پو رې ویست قبطې یې ډوب کړ
دا عقــل پو هــه د رو د نیــل ګو ره

---

(۱) لوښتنه = کوچېدنه او لېږ دید نه .

درته به وا یم دا دوه رموزه
که پوه پر ې نه شې لیمه د ې و وزه
ځو چه دې خپل و ی خپل به دې تل وی(۱)
ترسیال به نه و ړې خبره کوزه
* * *
در ته به وایم خپل حال په ځیره
دا زاده ؤ په حال خبیره
په توره ږیره مې که څه په کار ؤ
په تبر مې و نیوه په سپینه ږیره
* * *
در ته وایم د ښکار رازونه
چه سره ونښلی د ښکار بازونه
ترمنځ به خلاصه شی د ښکار هیلیه
آسمان ته د رومی په پروازونه
* * *
در ته پښتو وایم صافه سلیسه
بهره که واخلې له دې حدیثه
ذات یې خبیث دی هندکی هرگزمه کړه (۲)
چه ترې پیدا نه شی یو څو خبیثه
* * *
در پښنبه مه شه د بخت کږوه
خونی مزری کا په تا بڼوه (۳)
دباز شپړ لې زر که مې و لیده
دباد خورکو باندې زوږوه

---

(۱) په چاپی نسخو کښې (خپل به دی بل وی) راغلی دی .
(۲) دپښتو ټولنی په اوله قلمی نسخه کښې دغه مسره داسې ده :
وخت د فساد دی ښځه هرگزمه کړه .
(۳) هغه گیدړه چه دشپې ناری وهی .

در قیبا نو په ډېره رخه
دا یم جدا شوم دیار له مخه
شوخ یم چه پا یم په دا ډېر غم کښې
یو جدا یی شوه دو یمه سخه
* * *
درود په غاړه کښېنه نظر کړه
غافل که نه یې په دا باور کړه
لکه روا نې او به چه د رومې
رخصت خپل عمر ته هم هسې ورکړه
* * *
دروغ په ځان باندې خون خنزیرکړه
که ډار دې کېږی روایت ځیر کړه
طبیب چه وایی هسی تدبیر کړه
دا رو د و ینو سره خمیر کړه
* * *
دروغ که اړوی بلا له تا نه
دروغ خوی مه کړه اې زما ځانه
راستی پرې مه ږده له خپله لاسه
خدای به په تا کا ګرانه آسانه
* * *
در پغه خو شحال ختکه د رپغه
چه پرها رونه شی پله تا بې تېغه
په ځان دې واړه په خپله وکړې
نېزه د تا ده و تا ته نېغه
* * *
در پغه ښه زویه د رپغه ښله و رونه
چا رېې تر لعلو تر درو چونه
چه دواړه تو که لایق قابل لری
هغه ته وایه که مو نهې مونه

دښمن چه وايی در ته دا مه کړه
که ته هو ښيار يې وا ړه هغه کړه
شيطان دي نه پرېږدی د خدای طاعت ته
خو ته پر بهبود دی پکښې دازده کړه
* * *
دښو خبره ده په هره چا فرضه
در ته به وکړم پوره دوه عرضه
دبد خواه و منه د ښځو مه منه
له مرګه مه تښته تښته له قرضه
* * *
دصاحبانو حکم په ځای لره
نظر د دویو په حکم رای لره
که يی له حکمه خلاف عدول کړي
زړه مه د ګور کړه يا ځان ګدای لره
* * *
دعار فانو له زړه مردوده
و لاړي دديـن و دنيا له سوده
که هر څو ګرځي ترشرقه غربه
سعی دي واړه وينم نابوده
* * *
دعقل بخره عنايتی ده
لا له ميشاقه هدايتی ده
قابل به هيڅېږي کم عقله نه وی
زما خبره دا ايتی ده
* * *
دغره(۱)په کاڼيو کښي که چاکېميا مونده
در ته به وايم باورکړه مامونده
په نو نس توکه ښا يسته روغه
لکه مې غو ښته هغه مي بيامونده

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې (زنده) راغلی دی .

دکرېږي ونه ترخـــه ز يـږ ه د ه
مـېو ه يـې و لــې پستــه خو ږه د ه
اثـر دا صل هــر خيــ ز پيــدا کــــا
پــه خو لــه خو ږه ده په ز ړه کږ ه ده
* * *
دکوب و چـو ب د ی دا خو اقوا مـــه
اول عو ر تــه وا و ړه ای خـــا مـــه
آ سو نــه خرو نه مر يو نــه و و ړ کــی
بل رعيت د ی پــه دا تـــمـا مـــه
* * *
دلبر ې ساز ې د ی سحر ساز ی تــه
لــه خود را يــی و بــې نيا زی تــه
که زور که زر لر ې توان دشور شرلرې
ها لــه هــو س کړ ه شا هد با ز ی ته
* * *
دلور عفــت غـوا ړه دزو يه تـــو ره
هـغه چـــه دالــر ی بــلا يــې دو ره
چه دا يــې نه و ی مرګك يــې مېلمــه‌شه
مور د ې دو ختــه شی پــه دوا ړ وبوره
* * *
دليـلا ستركــه يو ه ګــل دا ره و ه
مجنــو ن ته پا کــه له عيب وعـاره و ه
چه پر ې مېــن و ی عيــب يې نه و ينی
مينه لــه ځا يــه مــګــر مکــا ر ه و ه
* * *
دمرد پېــغور ده جــا مه و رېښمينـــــه
نه د ې مهيــنه و ی نه لار نــګينـــــه
دا کسو تــو نــه د ښځــو بــو يـــه
ښـــو ه دمر د د ه په جا مه سپــينـــه

دمرد چه نه وی لمن خیر نه
پاك وی په ژبه پاك وی په (۱)ژمنه
که زر بلا وی اندوه دي نه کا
فر ښتې به وا ړ وی بلا له ده نه
* * *
دمرد چه نه وی وینا محکمه
په ده به نه شي در غله سمه
چه یو یې زړه وی یواه خبره
خلاص وی له همه خلاص وی له غمه
* * *
دمرد دعلم د هنر له حاله
زر خبردار شي له قیل و قاله
دنفس له حاله یې ها له خبر شي
چه وز سره وي په یو خو کاله
* * *
دمرد دعمر خو بی تر چل ده
تر شپیته پوري لا دوز بل ده
تردا دپاسه وخت د پیري شي
که یې د عمر بقا تر سل ده
* * *
دمردو قار گوره دمر د تمکین گوره
مهر له دوستانه له اعدا کین گوره
بیا یې له پسه دین و آئین گوره
هغه چه دا لري بخت یې قرین گوره
* * *
دملو کانو په راز خبر مه شه
که پري خبر شې د ځان خطر مه شه
راز یې د زړه په صندوق کښې وساته
په ښکاروړل یې چاته لربرمه شه

---

(۱) ژمنه = وعده- قول. په دریمه قلمی نسخه کښې (زمنه) دی .

دملـو کا نـو د قـر ب بـــا مو نـــه
لو ړ د ی پر ي مــله خېژ ه په‌ډېرګا مو نه
کـه ناګـها نـــه و رځنـې و ږغـــړي
رو غ بـه بیا نه مو مـې خپل اندا مو نه
* * *
دمور په نس کښـې فو ښتـې، یـا ر ه
دسړ ی و کښـې دا یـــو څو کـا ره
رز ق ، فعلونه عمـر ، ښـه بد بخـت
دا و سو سـې د ی د څـه د پـــا ره
* * *
دمـهو شـا نـــو مینـــه مشکـــله ده
غـم یـې د یار و ی ښا دی یـې خپله‌ده
څو ور تــه نیا ز کړ ي در باند ي ناز کا
د جـدا یـې بـــلا یـې بلـــــه د ه
* * *
دمیو مستـــه هغـه محبـــو بـــه
در ستــــه په مشکـــو په ګلا بو ډوبه
سر تـــو ره را غله خوري یـې زلفـــې
بـو سـه یـې را کړ ه تر قندو خوبه
* * *
دنـو دولتـو دنیـــا کـــه ډېـره د ه
د جود و ینا یـې لـه دلـه هېـر ه د ه
څو ك د ي یـې ګـر م او مـلا مت نه کا
یـو ه بـلا یـې تر تنـد ی‌تـیر ه د ه
* * *
دنیـــا بو ډ ی د ه د کا لو ډ یـــر ه
تـــر سلـــو ز رو مـړ و نو تـــېر ه
د ډېـر و مـړ و نو ما غـز ه یې وخوړل
لا بـله یـې خور ینــه پر ي نه ده‌سېره

دنیاکه دا ده چه را ښکاره شوه
ښه چه دوختـه لا ا وا ره شو ه
خواږه خپل زوی وو خواږه خپل ورونـه
زما لـه دو یـو نـه سینه پار ه شوه

* * *

دنیا مر دا ره د ه ګنده بـد بـو یـه
چـه پر ې تـو لیږ ی لـه هره سو یه
واړه سګـا ن د ی ګـر ګا ن ددا ن دی
با نـد ې غـو غـا کا دنفس لـه خویه

* * *

دنیا مـې و لید ه ددنیـا کا رو نـه
ښا دی یـې غم د ی ګل یـې خا رو نه
څو درتـه پـر بو ځـی پـه انبا رو نه
په زړه دې پـر یو ځـی هو مره با رونه

* * *

دنیـا نـا څیـز ده بـې دنیـا ژ و ه
دنیـا کـه څیز وا ی دنا دا ن به نه وه
اهــل بـه نه مـو مـې نا اهل ډیر دی
لـه خلکـو ګر ځـه جدا پـه یـو ه

* * *

دنیا یا پـا لـه ده یا سپینـه تو ر ه ده
نـېکـی بد ی یـې و رته حضو ره د ه
چه د ې ر ضا د ه هغـه په لاس وا خله
په هـر ه چار کښې راستی منظوره ده

* * *

دنـېك خوا هـا نو تـر بیتـو نـه
دبـد خوا ها نـو سیـا ستـو نـه
چـه دا یـې نه و ی ملـو ك یې مه بوله
کـه هر څـو ښـه وی پـه خصلتو نه

دوستان دي ژوه بد خواه دي ومره
زه برله تاو خورم ته برله عمره
چه هو مره مهر ته په اغيار و کړي
يار به دي پايي له هسې عمره
* * *
دولت چه ستا وي مود يې وګڼه
چه دنور چاوي نا بود يې وګڼه
حسد په مال مه کړه حرص دمال مه کړه
هغه چه دا کامر دود يې وګڼه
* * *
دولت چه مومې د چاله لاسه
نکبت هم مومې له هغه ناسه
دی دي په مثل پرورد ګار شو
بد کړې که نه يې ترې بې هراسه
* * *
دولت خېمه ده زويه مېخونه
ښه زويه زېږي د پلار په خونه
غم دمور پلار ددولت ناتار وي
تورشه دبدو زويو مخونه
* * *
ديار وفا ګوره راستي دا دواړه
هغه چه دالري ور باندې وياړه
که ښايسته وي ادب هنر لري
يار دې هم دا دي بل يار مه غواړه
* * *
دين چه خالي شي له ښه يقينه
کفر بهتر دی تر هغه دينه
چا دا خبره څه ښه ويلې ده
ماته لينده ده نا قصه مينه

ډو ډی غنمینــه و ی که او ر بشینـــه
پــه وخت د لو ړی خــو ږه لــګینـــه
مــو ږ دنبــا تـــو حلــوا تــه نه ګو ری
هو ښیــا ر به پــو ه شی په دا را زو نه
* * *
را تـــه ښــکا ره شــو وګــړ ی وا ړه
دو ه بــه نــه و ینـــی پــه یو ه غا ړه
وفا بــه نــه مــو مــې لـــه آدم زا ده
لـــه تــا چه وز ېږ ی باند ې مه ویا ړه
* * *
را شـــه ښېګــڼــه دو نـــې ګــو ره
خپل ځــا ن پــه نمر کا بل کا ترسیوره
په سنګک یې وو لــه میو ه دروا چــو ی
خصلــت له و نـــې واخله ا ی و رو ره
* * *
ربـــه چــه ما ت کړ ې دا صور تو نـــه
بیا بــه یــې ساز کړ ې په حکمتو نـــه
دنور چــا نه دی دا صنعـــتو نـــــه
ر بـــه تــا ښا یــی دا قــدر تو نــــه
* * *
ربــه در د منــد کړ ه بــې در دان وا ړ ه
چـــه وا ړه ژا ړی زمــا پــه غـــا ړ ه
خوشحا لـــه ملــك له بــې در دو ډ ك‌شنو
در د منــد پــه نو رو ملکو نــوغواړه
* * *
رنــځ یــې په غا ړ ې په غرو نو کښېږ ده
ګــو هر ګو هر د ی خدا ی یې راپرېږده
سعــا تمند شـــه د پــلا ر پــه خو نه
میند ې دا هســـې زو یـــه تل بلــبږده

زاغ او زغنو خالی غلغل زده
دګلو قدر شیدا بلبل زده

هغه چه نه لری مستی دمیو
هغه مې کله په ګل ومل زده
* * *
زر دې ورنه شی دناداني ترګوره
په زر دولت دې عزت دی ګوره

چه بد يې خرڅ کا قدر يې نه لری
کاسه يې زر شی په ډاګ نسکوره
* * *
زر غور زوو نی شه ځوانان ساتو نی شه
ځوانان ساتو نی شه زر غور زوو نی شه

د هر چا وړو نی شه سر داری کړو نی شه
سر داری کړو نی شه د هر چا وړو نی شه
* * *
زړه مې دې روغ کړ دلبرې واه واه
که زر يې را کړې په غیږ کښې آه آه

وخت دګلونو شو تازه بهار دی
ښه مخ تل تل ګوره باده همګاه ګاه
* * *
زما تو به ده له نادان یاره
چه یې یاری ده مهر خی تیاره

دی به دې ښه غواړی تا ته به بد شی
غم به پیدا شی دده له پیا (۱) ره

---

(۱) پیار هندی لفظ دی یعنی مینه او محبت .

زما دا يـمه خـدا يــه مـو جـو ده !
و جــو د د هــر چا د ى د تا لــه جوده

معبــو د بل نــه لر م معبــو د مــې‌ته يې
معبــو د مــې بل مــه كړ ه زما معبــوده

* * *

زمــا دا يــمه قــا يمــه خــدا يـــه
په خپل صنعت كښې قد ر ت نــما يــه

تــا مسلما ن كړ م تــا زه كا مرا ن‌كړ م
عــز يز د ې را وستم عــز يز مې بيا يه

* * *

زما لـــه د لـــه د بدو خواست بيا يه
و ښــو كا رو نــو ته‌يې په ژغاست‌بيا‌يه

ظلــو م جهو ل يــم پــه كړ و لا رو ځم
الــله تــه مــې په راه راست بيــا يـــه

* * *

زما نه او ر د ه اې نـــا نغتــا نـــد ه
تـــه وچ لــر ګــى يــې نه لښتــه تانده

دا اور به تا و ته پــه منــډ ه درشى (۱)
كــه ژا ړ ې ژا ړه كــه خاندې خا نــده

* * *

زما نه او ر ده تـــه لكــه سپـــا ند ه
كــه نــن ونه سو ې په اور كښې ګانده

هــم به لو ګــى شې هم به ايرې شې
كـــه ژا ړې ژا ړه كه خاندې خا ند ه

---

(۱) په دو همه قلمى نسخه كښې دا مصرع داسې را غلې د ه :اخر به دا اور وتا ته در شى .

زویــه بد بخــت شی په دا دو ه کا ره
عا صــی لــه خــدا یه عا صی لــه پلاره

بد بخــت چه کښېنی پــه ګلستا ن کښې
ګــل به یــې نه شی نصیب بې خا ر ه

* * *

زو یــه چه وو ت د پــلا ر لــه را یــه
تــو بــه د ې و کا کــم بخت تــه وا یه

تو بــه کــه نــــه کا سز ا بــه مو می
پــه دوا ړ ه کــو نه له یوه خــــدا یــه

* * *

زو یــه که ووځــې د پــلا ر له را یـــه
ز و یــه د چا یــې کم بخت ته وا یــه

تر پیل که لاند ې‌شی اندو ه یې مه‌کړه
په پیل که پا س کښېنې هم‌یې‌مه ستایه

* * *

زو یه مــې د ې ر د ی وا ړه عز یز او سه
په هر ه چا ر ه‌کښې صا حب تمیزاوسه

خو یو بهرا م دی په خوی نا ځیز د ی
لکــه نا ځیز د ی هسې نا ځیز او ســـه

* * *

زه تا پیــدا کــړ م له مــا ؤ طیــنه (۲)
بر خه د ې را کــړ ه دد یــن مــتیــنــه

دین مــې منلــی د پا ك رسـو ل د ی
زما تــو به د ه لـــه غـیــر ه د ینـــه

(۲) او به او خاورې .

زه دي کبـا ب کړ م خدای دي کباب کړه
غـليم خو نه يـم څـه خو حساب کـړ ه

نه دي و فـا شتـه نه دي جفـا شتـه
نا کسـه در ومه خـدا ی دي خراب کړه

* * *

زه چـه پيدا يم و هغـه کار تـــه
چار مـي ښکا ره د ه وکړد ګــار تـه

يا ننـګك يـا تو ره يـــا د ل آر امـي
يــا ز ړه تـل تللـی و هر هــر ښکارته

* * *

زه ډېر ميـن يـم پــه ښــه خبـر ه
نــــه ښه خبـر ه نــــه مر غـلـر ه

چـه ښــه خبر ه لــه چـا نـه وا ور م
وا يـــم چـه څـار کړ م مهرا نڅو زره

* * *

زه هـيڅ خبر نـه يم له خپلـه حـا له
هغـه جنين (۱)يم بې قيل وقـــا لـــه

ور ی شـم و ژا ړ م مـو ړ شم خندا کړم
هـو مر ه پـوهـېږ م په څـو اشکاله

* * *

زه يـې خبر يـم لـه ز يا نـه سو ده
حسد مـذ مو م د ی غـبطه محـمو ده

حسـد د چـا دی دنـــا مـــر دا نـو
غبـطـه را پـا خـی د مر د لـه جوده

---

(۱) جنين = هغه بچی چه دمور په نس کښې وی .

ژا ړ ه غـا فلـه پـه بـار بـار ژا ړ ه
د ځـا ن بـلا شو ي پـه خپلـه دا ړه
کـه دا جـها ن دی که بل جـها ن د ی
در ځــخه و لا ړ ل پـه غضلـت دوا ړ ه

* * *

ژبـه په تـن کښي ځـه عجـا یبـه ده
صحــت هم ژ به د ه ژ به هــم تبـه ده

چه ښــه مــې ځیرکړ ښه پر ي خبر شوم
جنــتهــم ژبه د ه د و زخ همژبه ده

* * *

ژبـه مـې نـه دری لـــه نصیحتـــه
وایـم د عـمـــر لــــه حـلا و تـــه

اول ځوانـــی د ه بیـا تـــند رستـی ده
بیـا یـې خـو بـی د ه لـه ښه دو لته

* * *

زیره دې سپینــه شوه ځوانی دې ولاړه
و گـور تـــه لاړ ل ، همـزو لـی وا ړ ه

اوس د ې د غمه سره ژوندو ن د ی (۱)
ژا ړ ه خـو شحـا لـه ختـکه ژ ا ړ ه

* * *

سا قـی بیا مهـر کړ ه دمیـو مهر شه
دمنــځ د تلـي مقـا م د مهـر شه(۲)

پکښي به ډېر ي ډېر ي خو ښــی و ی
بیــا را بر ســېر ه د فلــك مهـر شـــه

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښي دا مصرع داسې راغلې ده (اوسدې ژوندون دی دگورپه غاړه) .
(۲)تله ، دمیزان میا شت .

ساقي تحويل دي وكړه وته (۱)
پياخه را وا خله هغه تته
چه ما به تا سره په يا دو و خښنه
هغه زه زه يم هغه ته ته ؟
* * *

ساقي را پاخه په وزي را شه
د تاد ستر ګو بلا په ما شه

يو خو لبر پزي پيما نې را کړه
دا وړي مړ يم ته مې عيسى شه
* * *

ساقي را پاخه د يوټ (۲) هوا ده
دغه رضا يې لا ترجو زاده

خولا يو ګل شته په باغ و راغ کښي
اياغ را نو شه زما رضا (۳) ده
* * *

ساقي و ماته ډکې پيالې را کړه
شراب په خم کښي ددنيا ټې راکړه

بل به زما غوندې ميخور پيدانه‌شي
کو زي په ساى کښي دسنهيا لې راکړه
* * *

سحر مې خوب ليده اندوه مې زياته‌شوه
مى مې چه وخښل پيا له مې ماته شوه

سمند مې پاسه په بام جولان کړ
له بامه پر يوت شا يې غبراته‌شوه

(۱) (وته) وتل او باور .
(۲) دختکو په علاقه کښې د يو ځاى نوم دى (کامل) .
(۳) په دريمه قلمى نسخه کښې داسى ده : تلوارپه دورکړه‌زما رضاده.

سخا په هر چا په خپلو لا ښه ده
په ښو و یلو ژبه ګو یا ښه ده
دښود لبرو سره خندا ښه ده
خو شحا ل ختک ته دنیا په دانښه‌ده
* * *
سر په زانو کښېږ ده‌دا چار حاشا ښه‌ده
تر با غه را غه دا تما شا ښه ده
څو کام ترې مو مې په غم کښې‌درومې
دنیا که دا ده دنیا ته شا ښه ده
* * *
سر په زا نو کښېږ ده‌خوشحا له راشه
قدرت یې‌ګو ره په تما شا شه
لعل پیدا کا له سخته کا نی
خلیل پیدا کا له بت ترا شه
* * *
سر دار نه بو یه دا یو خو څیز ه
چه مړ نی و ی زما عز یز ه
دا دو د هش لر ی د ین و دانش لر ی
نه بې را ستی و ی نه بې تمیز ه
* * *
سړ ی خا لی شو ل له سړ ی تو به
دچاچه ګو رم فتنې اشو به
په بل‌کښې‌شل دی په خپل کښې سل‌دی
بل وی که خپل وی ترې توبه تو به
* * *
سړی که تور دی که سپین په دامه شه
دمرد په کار کښې عقل خطا مه شه
تن یو غلاف د ی ز ړه پکښې تو ره
مدار په توره دی غلا ف نما مه شه

شپـه د برات وه یو خـو ب مـې و لیده
کال یې غصه (۱) دی هرګوز مې‌ښه لیده

دوه توري ما تـې شوې یوه‌مې روغه شوه
دو هـمه توره مـې پـه رغېد ه لـید ه
* * *

شراب خو ښی لر ی پـه څښل بسیا ره
خـو ښی یـې نه و ی بیـا بې خما ره

هرچه دو لـت لری نکبت دې یاد لر ی
غره دې نه شـی پـه ځـان یکـبـا ره
* * *

شرم یـو سف دی ار زا ن یې مه پلو ره
غـتهه پـه کار ده و ړو ته مـه ګـو ره

نر ی و نه پـه نـر ی با د ښـو ری
کـه لو یه و نه یـې په لږ باد مه ښوره
* * *

ښځـه خوشـخو یـه غوا ړه خوش‌رویه
که نه بـد رو یـه ښه ده خوشخو یـه

مینـه یـې دېر ه تر رنګک په بو ی شـی
څو ك چـه خبـر د ی د ګـل له بو یـه
* * *

ښځـه چـه پا که و ی او پا کدا منـه
دد ې په نوز و ی خـو نـه رو شنـه
پـل د نا پـا کـې لکه اوږ ، بـل و ی
پـه خو نه بـل شی ددې لـه تنـه

(۱) غصه دا بجد په حساب (۱۰۹۵) کېږی‌اوپه دوهمه قلمـی نسخـه کښې (غفج) راغلی دی چه (۱۰۸۳)کیږی .

ښځه چه ځوانه ده هومره صحت ده
څو چه زړه ده هو مره زحمت دی
اولاد چه بد راوړی مېږ منومه وینې
اولاد چه ښه راوړی وینځه نعمت ده
* * *
ښځه چه خلاصه وی له هره عیبه
زړه یې خالی وی له مکره ریبه
په مصلحت به یې چېر ته بیا مومې
مگر پیدا شی چېر ته له غیبه
* * *
ښځه چه ورشی تر چل و پنجه
څو یې یې ولاړه ما رده بې گنجه
که ځان ترې مومې تر ې پستنه او سه
خلاص یې د رنځ شه خلاص یې له کنجه
* * *
ښځه که هر څو په مخ ز ښیا ده
په هر هنر کښې پسند لې دا ده
ظا هر یې مه گوره با طن یې گوره
ها له یې ستا یه که دا پار ساده
* * *
ښکار د تېو پك نشته نه ښکار د باز شته
که مې په زړه کښې ددوا ړو راز شته
کتاب قلم لرم اوس پر ې وېرېږم
دا د پیری نا ز او نیا ز شته
* * *
ښکلی ځوانان دی که ښکلې جو نه
پر ې مې سلام دی مونږه به څو نه
سخ دهغو د ې چه لمن پا ك وی
قضا یې نه وی زړ ژ ې لمو نځو نه

صبر دز ړه را و ړه را ستی دا دوا ړه
همت پــه کار کښې له خدا یه غواړه
که کام دفتح وظفر بـنیا نــه مــو مــې
تـا وا ن دې واړه ز مـا پـــه غـا ړه

* * *

صحـت چه نه‌وی لــه ښه احبــاب شره
عمـر تـېر ېږ ی لــه ډېر عــذاب سره
هو ښیار هیڅېږ ي بې غلطی نــه و ی
خـطا تړ لې ده ا هل صوا ب سـر ه

* * *

صوفی دا هومره له ما نــه ز ده کــړ ه
نور چــه یو هــې ږی وا ړه هغـه کړ ه
مستا نو مستــې پیا لې نو شلــې د ی
هـر څـه چه وایی غرض پر ې مه کړه

* * *

طـا لـع کـه ډ ك لر م لـه هر ه عیبـه
یو کـار یـې ښه د ی بـې شك و ریبه
چه څـو ك مـې پـا څـی پـه غلیـمی
ور با ند ې پـر یو ځـی بـلا له غـیبــه

* * *

تبـا خ چــه ووځــی تر یو څو لا سه
ورځــنې و خو ری د پا سه پـا ســه
پا تـې خوراك یې خوراك دسپـیو د ی
یــه دا خبـر شــه سخـن شنـا سه

* * *

عا شــق و بزار دی لــه موره پـلا ر ه
پـر وا یـې نه شی لــه نوره نـــا ره
و دیـن تــه شنا کا تر ایما ن تــېر شــی
کفـر قبـو ل کـا دیـا ر د پـیـا ره

عثما ن د ې وو ا ژ ه خو نــی آ سما نــه
علــی د ې هم کړ پــه تــېغ بې ځا نــه

حسن حسين دې دوا ړه شهيدا ن کړ ل
اوس بــه ته وا ړ و ې توره لــه چا نه

* * *

عجــب سو دا د ه د کا (۱) بيــن غو ټه
چــه ښه و ی ښه شی و بله بو (۲) ټــه

فرزند چه ښه را و ړی سود يې بې شماره
که نه دد رو ســو دا شو ه ترو ټه (۳)

* * *

عشــق د ځــوانــی وښکلــې تــو ره
ځــار يــې تــر فسقــه هــم ترفجوره

چه مــې نيو لــی د پير ی پــه دو ر دی
اوس مــــې دا زهــد د ی لـــه ضرو ره

* * *

عــطا دخدا ی د ه دا يــو خــو ښېز ه
تر دا بــه نشتــه نور څــه عــز يز ه
يــو ښــه جما ل دی يــو ښه خصال دی
چار د قـــو ت ده ورســره نيـــز ه

* * *

غو ق پــه نعمت کښې يم تر سر تر پا يه
ز ه دا نعمت لر م لــه خپله خــدا يــه

شــکر سپا س به يې په خو په ځای کړم
چــه پيــدا شو ی يم ضعيف له ځا يـــه

---

(۱) مهر ، دکابين غو ټه ، و اده .
(۲) ناراضه ، خفه (۳) فضوله ، نقصانی

غریب یم بو لم د غر بت بد له
رنځور شو و دړا ړه د بابا دله
نا بو د بو لاق د ی که بر وړ ی د ی
را غلي مه وا ی تر بر مو له
* * *
غضب ملوك لر ه درو غ ملا لر ه
بخل غنی لر ه فحش نسا لر ه
دا څلور تو که هر ګوره بد دی
فکر چه را غی په ز ړه کښې مالره
* * *
غلیم مې زړ دی په دا دو ه رنګه
لکه چه را شی ځی مې له چنګه
بل په اسا نه را لر ه نه را ځی
بې سپینې تو رې بې دېره جنګه
* * *
غم و غلیم ته له د له دو ره کړ ه
خاند ه هو س کړ ه ښا دی سر ور کړه
که مخ دې زېړ و ی په دلګیر ی کښې
ته یې په دواړو خپېړ وسود کړه
* * *
فر زند چه وو ځی د پلا ر له رایه
ښا دی یې کومه ده بد بخت ته وایه
دانه که ووځی دپلار له حکمه
خر وار به مو مې بد ی له خدا یه
* * *
فر ښته که کښېنې چې رې له د یوه
څه به زده نه کا بې مکرو ز یو ه
چه سره ګډ شي خوند به یې نورنه‌شی
که مړ غو نی کښېږ د ی له سېو ه(۱)

(۱) سېب ــ منه .

فولادي تورې وي که لړ به تبه
تر دا لا بده ده بد ګوېه ژبه

ډېرې بلا به درخخه واوړي
ژبه که بند کړې دپند طالبه
* * *
قاضي مجنون يم عمر دې ډېر شه
د عشق ته ګوره تر عقل تېز شه

خوله د ليلا ده د عشق په شرع
په موزي ګيو زهر ګنډه پر ښبه
* * *
قدر د ګل و د مل مستانو زده
نه تيره د لو نه تنګد ستانو زده

هغه چه نه خوري په مي خه کار لري
راز مې د ميو مي پر ستانو زده
* * *
قران چه لوست شي په هغه خونه
څنې به ديو کا خېمه بېرونه

څو چه بنيادي ددوا ړو کو نو دي
پري به دده شي خونه مشحونه (۱)
* * *
کار چه خپه شي په افکارونه
وا ړه انبار شي هغه کارونه

ځينې کا رونه نن لکه ګل دي
ګانده (۲) هغه شي لکه خارونه

---

(۱) ډکه .
(۲) مستقبل .

کار د بېچون او دبېچګون ګوره
دمځکې مر ګک ګوره بیا یې ژړندون ګوره
په سر دپا سه دا شین سیحون ګوره
پکښې دستو روما هیو یون ګوره

* * *

کامل چه و ګوري و کاینات ته
نظر یې و شي وهر ذرات ته
په هر ذرات کښې هستي د حق وینې
دلیل یې ور ولي دحق وذات ته

* * *

کله دخاصو نصیحتو نه
کله دعامو ملامتو نه
لا داو له په عشق کښې دا دي
بیا پسې نور نور فضیلتو نه

* * *

که بادشاهي ده که وزیري ده
که خواجګي ده که امیري ده
زوال دوا ړو و تا ته وایم
خرخ د فلك دي مرګک دي پیري ده

* * *

که باوري شي د ښکاربازونه
بیا یې نظر وي په پروازونه
ښځې هم هسې د ښکار بازو نه دي
هو ښیار به پوه شي په دا رازونه

* * *

که پند زما منې نمك حرام مه شه
تر ډېر و پا تې جو ته طعام مه شه
جو ته طعام مې خوراك دسپیو دی
غصه په زړه کښې په دا کلام مه شه

کــه پندمې نغوږ ې مه کړه دوه تو که
خوا ست د خسرۍ لــه خپله‌روکه (۱)

دروغ خبــر ه پــــه خو لــــه رامه وړه
پــه کا رو با ر کښښــې له واړ ه تــو کــه
* * *

کــه تا زی ژ بــه هرګــو ره ښــه د ه
فــار سی هــم ډېر ه په خونــد خوږ ده

چا يــې پلــو د جما ل وانــــه خيست
ښښتــــو لا هســـې بــکره پــر تــــه د ه
* * *

که تــل به پا يــې غم دجها ن خــو ره
دجها ن غم مه خو ره غم د خپل‌ځان‌خوره

دانقــد پــه لاس کښې ابتــه مه کړ ه
دضا يــع شو ی عمــر ار مــا ن خــوره
* * *

کــه‌تــــه‌آ دم يــې کــار د آ دم کـــړه
کړ ې‌بــه خــو کړ ې کارو نــه سم کــړ ه

ددنيــا خلــك سپــی د ی ددا ن د ی
صحبت لــه سپيــو ددا نــو کــم کــړ ه
* * *

که تــــه باد شا ه يــې دتخت دپا سه
خدا ی تــه ګدای شه خبر شنــــا سه

عار ف د ځان شــه دوست دسبحا ن‌شه
غــير فکرو نــــه له ز ړه و بــــا ســه

---

(۱) ښايی لله روکه څخه مطلب روکی = ورووروی .

که ته خبر شي له دي ر موزه
سپي چه لنگه شی له گرگه یوزه
نتا یج یې وا ړه نا بو د پیدا شی
وحشي صفت وی مر تبه کوزه
* * *
که ته رنځور یې طبیب طلب کړه
ورته زاری ژړا شغب کړه
که روغ یې واه واه خو ښی طرب کړه
چه تل تندرست اوسې هسې سبب کړه
* * *
که ته لو یی غواړې ز ما پسره
لو یی به نه مومې بې درد سره
صرفه په زر مه کړه وبره د سرمه کړه
مگر په دا کړې لو یی تر سره
* * *
که ته وفا غوا ړې له ما نه جا نه
وفا به نه مومې له دې جها نه
وفا به بیا مو مې په بل جهان کښې
چه غرضونه و وځی له میا نه
* * *
که جود په ما و کړې بهتر د ی تالره
که جو د په ما نه کړې بهتر دی مالره
دجود په کړه به منت په ما بار کړې
منت چه نه وی ښه دی دا نا لره
* * *
که چا ته و کړې د زړه خبره
تا کید پرې و کړې چه ویې نغره

که دې خپل زو ی وی گومان پرې مه کړه
چه به یې نه کا چا ته ظا هره

که چار د عقل لري بسیاره
چار پای به نه کړي ګویا هوښیاره
ته خاموشی زده کړه له چارپایانو
چه خاموشی لري فایده تیاره
* * *
که چېري و ویني عیب له یاره
ښکاره یې مه کړه دخدای دپاره
عیب پوشي ښه ده که عیبجویي ښه ده
فکر ددواړو وکړه هوښیاره
* * *
که خبر دار یې بې شکره نان مه خوره
د تېرې چارې په زړه ارمان مه خوره
پیوند دعمر په ویښتو تړلی دی
غم دخپل ځان خوره غم دجهان مه خوره
* * *
که خپل خدای پېژنې را ته و وایه
در ته به وایم اې رهنمایه
خدای مې هغه دی چه نیستو مهست یې کړم
زما تو به ده له بله خدایه
* * *
که دا خو، دا ده، بېد بېد یاده
چه دا زما ده کله زما ده
که دافناده بله بقاده
عجب غوغا ده عجب سوداده
* * *
که دګلا بو دګل خارونه شته
بیا یې په ګل کښې ډېر ډېر کارونه شته
اول یې روی ګوره بیا یې ښه بوی ګوره
بیا یې په سو لو کښې څه کوپارونه شته

که دې په تن کښې دنس هـوا شتـــه
با لـغ لانه يـې نه دې صفا شتـــه
که کار پـه حکم د روح اغا ز کړې
فېرو ز مندی د ې په دين دنيا شتــه
* * *
که دې پـه غو لی و لا ړه و نـه د ه
هـو مره پر ې و يا ړه‌خولويـه پلنـه د ه
يا بـه مـېو ه لری يا به سايـه لـر ی
جـو ړه پـه و نه بانـد ې ستا ينـه د ه
* * *
که ديـن دنيـا غـوا ړې پر ده پو شی کړه
فتـنې له خولې پاځی خوخاموشی کړه
که نه خا موش يې نه پر ده پو ش يـې
بـېخو ده پر پـوځـه باده نوشی کړ ه
* * *
کـه ډېر اغز ی لرې په خنـګ کښې ګله
اغـز ی دې نـه وينـی شيـدا بـلبـه
چه پر ې مين وی عيب يـې نه وينـــی
هـر څـه يـې اخلی بـې تــا ملـــه
* * *
کـه ډېر ښکا رو نه وو که ډېربا ز ونه
وا ړه مـې و ليد ل نور نور را زو نـــه
چـه خبر دار شوم پـه انجـا م د چا ر ې
يـا ر غ د ت ور ې دی يـا نما زونــــه
* * *
که ډېـر ما ړه وی د ښکار با زو نــــه
پـه ز ړه د زر کو ، لر ی را زو نـــه
نـاز يـې دوړو دی او رباندې ښما يـې
کـه ښما يسته کـا هو مره نا زو نه

که ډېر هو ښيار يې خپسر نا دا نکړه
له ښو له بد و سلو ك يكسا ن كړه
هر څو ك پوره د ی دخپلې چا رې
خو شحا له ځان، غم دخپل ځان کړه
* * *
که ډېرې ښکلې په صورت بزر ګېشته
لکه مهرو ده د کو مې پرګې شته
هرچا چه و ليد ه ز ړه يې پرې با يلو
خوشحال وېر ېږ ی دده هم ستو ګېشته
* * *
که راته غو ږ کړې ښه د لسو ز ی د ه
که مرګ قبو ل کړ ې فتح رو زی ده
مټ کړ ه زخمو نه خو ره ظفر که مومې
که نه ستا تېښته هم فيرو زی د ه
* * *
که را ست ګويی لر ی پا که عفيفه د ه
که زر خريده ده په ذات شريفه ده
که لور د پير ده که دا يې نه و ی
بده کثيفه ده ګند ه خفيفه د ه
* * *
که زړه دې خلاص وی د شك له ز نګه
اندو ه به نه کړ ې د غليم له جنګه
بې ستن د خو ب ده که صف دجنګ دی
دا دوا ړ ه تو که نه دی دو ه رنګه
* * *
که زوی دپلا رېې د پلار هنر واخله
نه چه يې مال و ملك ويا زر وا خله
بهرا م که زو ی د خو شحا ل ختهك ؤ
هنر يې نه ؤ ځنې خبر وا خله

که سبرو نه په قد دراز ده
نه چه تر تا نه هم سر فرازه ده
زما حذر شی د تا له ستر گو
که دکو تري و پره له بازه ده

* * *

که سرو ری غواړي اوار ه کړو نی‌شه
پاره دو زی کو ه نه پاره‌کړو نی شه
چه بد له تا و کا په څرخ یې وسپا ره
ته یې و کار ته ننداره‌کړونی‌شه

* * *

که‌سر داری غواړی بلا دې دو ره
عقل همت را و ړه بیا جود بیا تو ره
لکه اسما ن و ته ختنه گرا نه ده
سر داری لا ده گرانه منظو ر ه

* * *

که سر دا ری غوا ړې خپل زړه د شیر راوړه
صرفه په ځان مه‌کړه حمله په ډېر راوړه
ضرب المثل دی د هو ښیا را نو
ملك ته شمشیر راوړه ښځې‌ته‌کبر راوړه

* * *

که سرو ری غواړ ي د هر چا وړو نی‌شه
پر ده پو شی کو ه لکه پرونی شه
که بد گفتار د ی که بد کر دا ر د ی
چه عذر خواه شی اواره‌کړونی شه

* * *

که ښا یسته یې په مخ تر گله
پوی‌ېد جفا ځی ستا تر کا کله

گل که ز یبا دی چه بې‌وفا دی
مځکنه‌فر یاد کا ځني بلبله

کـه ښکلی ته لې شـی سره لـکو نه
رابا ندې پر پـو ځـی دا فلـکو نــه
خپل یار بـه هېـچېرې پکښې غلط نه کړم
کـه دا مـې سترګـې وی داکو لکو نــه
* * *
که ښـې ښې جو نه که لبا سو نه دی
کـه ښه با زو نه کـه ښه اسو نه دی
خوشحا له زوړ شوې اوس دا هوس مه کړه
د ښـو ځوانا نو دا هـو سو نــه دی
* * *
کـه عقل و رك شی له دې جهـا نــه
هـېڅ پا تـې نه شی ا ی زمـا جـا نـه
هېڅوك به نـه وا یی چه زه نادان یـم
هر یـو به ښــه ګڼـی ځان له لقما نه
* * *
کـه غو ږ کـه سترګـې که خوله که پوزه
هر یـو خپـل کار لر ی تر بل یې بوزه
کار چه دسمع دی بصر یې کلـه کـا
دخــو لې په کار نه ده پو زه فـیروزه
* * *
که کار پــه زیر ه دی یا پــه غـا ښو نه
له مانه پا تې شوې ګلرنګـې جو نــه
کـه کار په نور څه دی خوا جه خـضریم
لا به د جـو نـو ګــو رم مخـو نــه
* * * *
که کـا ڼــه نه و ی د چـا مخـو ږو نه
ه به و وې د سو د پنـد و نه
کــه ړندې نه و ی د خلکو سترګي
به وښیـل ورته ملـکو نــه

که مرد یـې مه پـر پړ ده مر دی له دسته
مرد دی دپاسـه ښـځـه د ه پـسته
مرد چـله تر ښـځې پورې ز بون شی
مرد ی یې نیسست شو ه ښځه شوه هسته

* * *

که مهتری غـواړ ې د هر چـا وړو نی‌شه
اواره کړو نی شـه اواره کړ و نی شـه
دز ړه پـه کور کښې ځای در حمان وکړه
دز ړه لـه کو ره شیطا ن شړونی شه

* * *

کـه می پـه سر شـې دمینـې تا جه
نوربه مـې خلاص کړې دغم له با جه
بـېدر د ، د تـا د قـدر خبـر نـه د ی
ما تـه را درو مـه د عشق تـا را جـه

* * *

کـه نور خـه نه وی دا هو مره زده کړ ه
چـه زړه دې یو دی یا ری یـو ه کـړ ه
څو چـه یا ری هـو مر ه غمو نـه
ډیـر ې یار ی له هـېچا مـه کـړ ه

* * *

که وی هوښیارد ې وی نادا ن دې‌یارمه‌شه
ته به یې ګل‌ګنې دربانډ ې خا ر مه شه
وخت د فساد د ی سړ ی لـو نه‌ښه دی
کـه ښـځه وکا د زو یـه پلار مه شـه

* * *

کـه هر څو ښـه د ه چه تـېر بدو نی‌ده
دنیـا په پچـه نـه پیـر بـدو نـې د ه

که ښـه کړ ې ښه کړ ه که بد کړې‌بدکړه
کـړ ده د هیـچا، نه هـیر بدو نې د ه

که هر څو لـښ ه ده پـه ډېر يـې ونيسه
دنيـا بـه تېره شي په تېر يې و نيسه
چه نو دې شو م کا کا ر دې مـذ مو مکا
واو ره پـه زهـر ګـنډېر يې و نيســه
* * *
که هر څو مست يې اې در د اشا مــه
مستـې دې هېـڅ ده زمـا تـر جا مــه
تــه لا خبر يـې له ننـګك و نـــا مـه
زما مستـې د ه علـې الـد وا مـــه
* * *
که هر څو و کړ ې ددنيـــا عيشو نـــه
کو ټو نـه ما ت کړ ې په خپل جيشو نه
کـه عمر دې ډېـر شي د جم لـه عمر ه
پـــه تا به و شـــي دمرګ طيـــشو نـه
* * *
که هر څو پـو ه يـې خو شحا له راشه
خـضر پيدا کړ ه پسې مـو سی شــه
سخ دهغـه د ی چـه بنـه پـېشوا لری
غـم به دې نه و ی خبـر پـــه دا شه
* * *
کـه يـې د خضر پيا لـه خو ړ لـې د ه
دا نـا هستی د ژړ نـدو ن ژ ړ لـی د ه
هر چـه کما ل لری هغـه ز وا ل لـری
هستـې نيستی يـې سره تـړ لـې د ه
* * *
که هر څـو تـېر يـې تر صحبتو نـــه
علـم ادب لـر ي فـصا حتـــو نــــه
لا به پـه خپلـه ژ به ډېـر فهم کـړ ي
د ژبـې ډېـــر د ی قـبا حـتـو نـــه

که هر خو ډېره ده دنیـا تر قیا سـه
ځای دې دنیا وکړه (۱)| دزړه د پاسـه

زه به فتـو ی در کړ م چـه باك يې نشته
دنیـا سود منـه ده وتا تـه نا سـه
* * *
که یار دې سپـین دی و تا ته تورمه‌شه
کـه د صفت دی هـم د پیغـور مـه شه

نیك بد به وا ړه پـه دا پـو هېـږ ی
که ته هغـه يـې‌خوی دې اوس‌نورمه شه
* * *
ګـل تـه ګـویا شوه د با غ بلـبلـه
چـه نا ز ډېـرمه کړه دچمن ګـلـه

ګـل وې پـه بخـر ه د ښکلیو ناز دی
خبـرې مـه کړه بـې تـأ ملـه
* * *
ګـمراه‌مـې مه کړه تل مـې په لار لره
دعـا بـه دا کړ م ما پر هېز ګار لره

دنیـك مر دا نـو سره مـې شمار لر ه
خـد ایـه لا یق مې دخپل دیدار لـر ه
* * *
ګـو ره دا فـکـر عبـث ز مـو نـږ ه
هسې پـه باد ځـی نفس ز مـو نـږ ه

عمـر پـه لهـو پـه لعب تـېر ېږ ی
مو نـږ دهوس یو هو س ز مـو نـږ ه

---

(۱) نیاو ، عدل ، باز خواست .

ګوما ن دنیکو تـل پـه دوستا نـو کړه
ګوما ن د بدو پـه دښمنا نـو کـړ ه

دجـا هلا نو سر ه قـر یـن مـه شـه
صحبت یك لختـه له عا قـلا نو کـړ ه
* * *
لاړي دشوا ري غـا ښـی غارړو نه (۱)
اوښـا ن پر ي بیا یی په قـطا رو نـه

کـه خـړ ه رو یی د غر ه پـه سر بهځی
دغر ه پـه سر نه ځـی لښلی(۲)بارونه
* * *
لاپـې د عقـل و علـم هـو ش هو مره
دکـا م د پاره جو ش خـرو ش هومره

دسود پـه ل وری هر چا تهګوش هو مره
دزیا ن دپـا ره دخا طر جوشهومره
* * *
لقـمـه طیبـه صـلـو ة دادوا ړ ه
که ستا پـه ځا ی وی ښادیکړهیاړه

که دي پـه دا کښـې خلـل پیدا شـی
غـم دي په کـور دی کـم بختـه ژا ړ ه
* * *
الکـه چه شوی د ی زما لـه دستـه
شو ی به نه و یلـه مـی پـر ستـه

شهوت بـلا د ی سړ ی ګـمرا ه کـا
دده مستـی ده تـر هر څـه مستـه

---

(۱)په دریمه قلمی نسخه کښی (عاشقی غرونه) راغلی دی .
(۲) لښلی = کوچیدلی ، لیږ دید لی .

لکه مې غو ښته هغه نګا ره
غا ړه غړې د ه را سره یا ره
په سخ مې مه کړه د رقیبا نو
دعا مې داده پر ور د ګا ر ه
* * *

لنډۍ به وانه وړی له لنډیتو به
لو لې به وانه وړی له لو لیتو به
که همه عمر سپی حلوا خوروی
منع به نه شی سپی له سپیتو به
* * *

له بدې او سپنې کړه توره سا زه
په غو ځول شی بیا بد اواز ه
که یې په مښکو په عنبر کښې ځای کړې
بد بوی به بیا ځی له بد ه پیا زه
* * *

له تا چه بیم کا ور ځنې بیم کړ ه
مه یې محرو م کړ ه مه یې ند یم کړ ه
په زورکه هر څو دده دپا سه یې
حذر ترې بو یه کار د حکیم کړ ه
* * *

له خپله یا ره غوا ړه څو خبز ه
تش دې یې نه وی ز ړه له تمیز ه
ټینګ دې په شر ع ټینګ دې په دین وی
د نیادې نه وی ورته عز یز ه
* * *

له زا غه ز ده کړه دا دو ه درې تو که
یوچه ر زق نه ږ دی ګاند ه ته روکه
بل چه د خو ل کا مخفی له خلکو
بل چه په تراه وی له وا ړه لوکه (۱)

---

(۱) لوك = هندکو لغت دی ، خلکو ته وایی .

لـــه ښو سړ یو ایـــګا نګـــی ښـــه د ه
له بده خلـــکــه بېـــګا نګـــی ښـــه د ه
په هو ښیار ی کښې چه خلاصی نه مومې
ځان دېـــوانه کړه دېو انـــګـــی ښـــه ده
* * *
لـــه قا مـــه و لاړ شو م لېر ې په کروهه
خا لی ار ما ن دی ور وستنـــــــــی پـــو هه
پـــه تېر و چا رو پسې ار ما ن کړ م
اوس مـــې خـــه سو د دی له دې اندوهه
* * *
لینده چه نه وی پـــه غـــو ز یو ســـمه
غشـــی چه کو ږ وی پـــر خـــا نـــه کـــمه
نه بـــه دنخښـــې ګـــذار پر ې وکړ ې
نه به پـــه غشی کړ ې غر څه بـــې دمـــه
* * *
ماچـــه میـــدا ن دد رو غـــو ږ لـــیـــد ه
بل یـــو میدا ن مـــې تر دا لوی نه لید ه
خـــو ملـــك یـــې واړه کند ې کو دری‌دی
ما ر و لـــړ م مـــې پکښې پراته لیــــد ه
* * *
ما ددا نـــا کـــړ ه دا و ینـــا خو ښه
ړانـــد ه د ې نه ځـــی بـــې عصـــا کـــشه
تمه مر غو نـــه په دا م بـــند ی کـــا
ســـړ ی خوا ربـــږی لـــه خپلـــه اشه(۱)
* * *
ما ډیـــر تـــېز لـــی د ی بد خو ی اسو نه
چـــه غـــلا د ز ړه اری بـــد وسوا سو نه
ټکنـــی هېچـــېر ې په مترو که نه ځـــی
کـــه پـــه و هلو سره کـــا لا ســـو نـــه

(۱) اش = تمه ،امید ، آرزو (ظفر اللغات) .

ما وي زمـــا غونـــد ي ميخــور بل نشته
چـــه مـــي بـــي ميو شر شور بل نشته
هسي مستـــا ن مـــي په نظر كنبيــو تــل
چـــه يـــي بـــي ميوبيـــوور (۱) نشته
* * *

مــخ دسا قـــی ګــو ره څو لا بهار شته ۹
غــو ږ پـــه ربا ب لره څو يي لاتار شته
شــبخـــا ن د ي ژاړ ی ته خانده، رنداوسه
غــم د ګـــناه مه‌کړه چـــه استغـــفار شتـــه
* * *

مـــر د ، دميدا ن د ی بنځـــه د کټ د ه
نـــه دا خبـــــر ه دغشــ دو ټ د ه
داو بنی بـــا رو نـــه پـــه تا څو ك‌نه لېږدی
مـــر دی که ګـــو ري په څه خومټ(۲)ه‌د
* * *

مردی دا مـــه وا يـــه چـــه په ذكـــر د ه
يـــا پـــه دنيـــا د ه په مال پـــه ز ر د ه
کـــه شر منـــګك لر ي د ســـر پروا نه‌کړي
مـــر دی هم دا ده کـــه دي‌په چرده (۳)
* * *

مرګك دميدا ن را پـــه بستر مي مه وژنه
مؤمن مي وژنه كا فر مـــي مـــاه و ژنـــه
چه پـــــه ميرا ث مـــــي حساب كتا بشی
هســـي غـــو ولی تو انـــګر مي مه وژنـــه

---

(۱) بيوور = ذكر، مجلس ، مشغولا (ظفر اللغات) .

(۲) په دواړو قلمی نسخو كښی په (څخومټ) راغلی دی .بنایی چه اصل يې (څه خو په مټ) وی .

(۳) كه دي په كار ده .

مر هم په زړه کښېږ ده ، په پر هارونه
دا نا به ګل کری نا دان خا رونه
په هره هره سو ړه لا س مه منړه
پکښې به خوب کا خو نی ما رو نه
* * *

مستی دمیو مکیا ل مکیا ل(۱) ده
بیا د ځوا نی جوا ل جوا ل د ه
که دامستی دو اړه سره کړي
ور ځنې د پر ه دما ل دما ل د ه
* * *

مغل بې قدر ه پښتو ن بې ننګه
تو به له تو ري تو به له جنګه
تسبیح په لا س کښې په نظام‌پورکښې
ناست په مسجد کښې جمدر ترځنګه
* * *

منصور چه مست ؤ له هغه جا مه
جر عه مې را غله ز ما تر کا مه
منصور په دار شو ز ه به لانور څه‌شم
که راز مې ورشی تر خاص و عا مه
* * *

مهر په ز ړه‌کښې زمادیار نشته
زما په زړه کښې صبرو قرار نشته
نه څوك غمخور لر م نه زر نه زورلرم
اوچا ته د م و هم ځای دګفتار نشته
* * *

مهر نیکا نو سر ه جا وید لر ه
تل ز ړه له دو یو سره سفید لر ه
بدا ن که هر څو لایق دبد و د ی
نه چه یکلخت یې محروم نومیدلره

---

(۱) پیمانه .

مــه سلطنــت غوا ړه مه ډیر دو لت‌غواړه
ښــځې تــه وا یه عصمت عفت غــواړه
تو فیــق لــه خدا یه دعبــاد ت غــواړه
خــد مت د ښو کړه د ځــان‌صحت غوا ړه
* * *
نا دا ن پــه خپلــه پرېوځی وا و رتـــه
بــلا په خپــله را و ړ ی خپــل کورته
مــه نصیحــت وا یه و نــا پو ها نــو ته
مــه آ ینــه نیســه چــېر ي و کور تـــه
* * *
نا دا ن‌پــه سر لــر ی ځــېر ه ز رینــه
هــو ښیار دو ه ګــزه پټکی لــر ینـــه
تر هـــر خــه ګــور ه دا بــد تر ینـــه
نــا دا ن چه پا یی هوښیار چــه م رینــه
* * *
نــا مراد ی ښـــه د ه د چا تر پو ره
خانی میــر ی کړ ه نه چــه تر ګو ره
خـــه ښـــه متــل دی پښتنــو کــړ ی
چـــه غــل شا ړه شی نه چه‌تر کوره
* * *
نــظر مــې و کړ پـــه کــتــا بو نـــه
ډېــر یــې ښیــل د ی ډېر یــې با بو نه
نورې بــه نــه شی از لـــی چـــا رې
کـــه ثوا بو نــه د ی کــه عذا بو نـــه
* * *
نفــس پــه ارا م د ی ز ړه پــه خو ندو نه
دا د واړه زده کــړه واوره پــندو نـــه

نفس پـــه لمد ه و چــه آرام و کـــا
زړه پـــه خوندو نو مات کـا بندو نه

نن په نظر را غله یوه و زیره
ښه تر تبت وه هم تر کشمیره
زلفې یې ښې وې دتبت ترمښکو
په تورو سترګو وه دکشمیر میره
* * *
نه اوس خپلوی شته نه پیوندونه
ګنه سره نه دی دچا سندونه
خوشحال له بس کړه خاموشی ښه ده
وچاته وایې دسود پندونه
* * *
نه به دا مځکې وی نه اسمانونه
وا ړه به واوړی دا دیوالونه
باقي به بل یو جهان پیدا شی
مولا لرن نه لری خپل جهانونه
* * *
نه په خپل رای راغلم ودې عالم ته
نه په رضا درومم بیا و عدم ته
په خه شان راغلم په خه شان درومم
قطره چه ښله شی درومی بیایم(۱) ته
* * *
نه دې خه مهر د زړه په ماشته
نه دې د ژبې د روغ رښتیا شته
هېښ یم که مست یم که لېونی یم
چه لا مې تمه د یاری په تا شته
* * *
نه سره سم دی واړه مړو نه
نه سره سم دی د هر چا زړو نه
زړه هم هغه ګڼه چه لکه غر شی
که باندې راشی هزار غمونه

---

(۱) دریاب .

نه ننګ نه شرم نه حیمت شته
نه مهر مینه نه محبت شته
زوی یې چه لوی شی زوړ ل دپلا رغواړی
نن په دا دور داقبا حت شته
* * *
نیکا ن عزیز دی له خپله رو یه
بدا ن خوار زار دی لد بده خو یه
که نیک یې مه پر ېږ ده بدی له لاسه
تبنته د بدو له بده بو یه
* * *
نیکا ن عزیز دی له خپله رو یه
بنه کړه له بدو سره خوش خو یه
په با غ کښې هر ه ونه او به مو می
تر وه تر خه وی خو ږه خوشبو یه
* * *
نیکا ن له خپله خو یه خصلته
خلا ص وی له هر ه عیبه علته
عفو بدا نو لره پیدا ده
نو میدی مه کړه ته له ر حمته
* * *
واو ر ه د وه پنده زما فر زنده
تمه حرص لری خوا ری خر ګند ه
دو لت د صبر د قنا عت دی
هما ی چه خلاص دی له هره بنده
* * *
وچا ته مه کړه د را ز خبر ه
خو چه توانیږ ې را زو نه نغر ه
درا ز خبر ه ده یا تیر ه توره
یا در ګو هر ده یا مر غلر ه

وچـاتــه وا يـــم دا ښــه پندو نـــه
چــه دمنلـــو ما ت شو ل بـنـدو نـه
پـلار دخپل راى شو، ز وى د خپل‌راى‌شو
جـدا جـدا د ى سـر ه سنـدو نـــه
* * *

وخــت د پير ى را غـى څوانى مې ولاړه
پـه کا م نا کام مـې شوه پيرى په‌غاړه
دا هـم پـو هيږ م چـــه قدر نه لـرى
کـه خانـد ې خانـد ه‌کـه ژا ړې ژا ړه
* * *

وخـت دپيـر ى ، را غـى خوشحا له
لا د ې پـــه ز ړه د ى دا يو څو خياله
خيا ل دننـګو نو خيا ل د جنـګو نـو
خيـا ل ددلبـر و لـــه ـخط و خا لـــه
* * *

وخـت د تـلاش دى پـه ماپير ى راغله
پـه زړه کښې خو ښه بيا فقيرى را غله
زويـه مـې د ير دى چه نا قابل د ى
څـکه پـه خو نه دا دلـګيـر ى راغـله
* * *

و رور چه دځا ن شو ژو نـد يـې وژاړه
کـه هر څو ښـه د ى په ښه يې‌مه وياړه
کميـن چــه مست شى ځنـې پناه غوا ړه
خــو شحا لـه ځـان په سګانو مه داړه
* * *

وفــا به نه مو مـې لـه هـر ه يـا ره
يـار ى مـه کړه ، لـه چا هـو ښيار ه

دا اوس يـا رى دى ښو خو نـې د ى
واو رتـه خو نـه دو ښـو تـيا ره

وفا تر ي مـه غوا ړه دا دو ه د ږي خیز ه
چـه بـي و فا د ی زمـا عـز یـز ه
یوا س بـل ښـځه کـه هرڅو ښه وی
در یـمـه تـو ره و ر سـر ه نـیز ه

* * *

وما تـه خـو ستا یـي شېـخه نا بوده
دجنـت حـو ري نور ، نـور مقصو د ه
نـن بـه ګـلر نګـه معشو قـه ګو رم
زما تو بـه د ه لـه نسیـه سـو ده

* * *

وما تـه ښـه د ه هـو ښیاره کو نـه ه
تر پـېغلي جنـي کـم عقلـه ښـه ه
هغـه بـه زیست و روز ګـار په عقـل کا
دا بـه روزګـار کـا پـه خپلـه هـنه ه

* * *

و نه تـل نـه و ی سر ه یکسا نـه
لښتـه و ی ونه شی سته شـی جا نه
خـو شحـا لـه مه کړ ه ما ښـه له چانه
تـه هم آسمان کړ ي په خوځو شا نـه

* * *

وېښتـو تلوار و کړ ه ږیر ه مي سپینه‌شوه
راځـني ډ وره د ښکلیو مینـه شـو ه
پـه غـم د ږیر ي و م غـاښونـه ولاړ ل
اوس مـي پـه سترګـو پیری تعینه‌شوه

* * *

هرچـه و فا لر ی اهـل هغـه ګـنه
چـه بي و فا و ی سهل هغـه ګـنه

چه تـه یـي اړ و ي و ښو ته نه او ړی
زمـا پـه پـو هـه جهـل هغـه ګنه

هر څوك چه جن کا په سپينه ږ يره
هر سپين و پښتـه يې ، تېره تر تيره
دهغې جنې تر ز ړ ه و تلـی و ی
در تـه مې و وې وا و ره پـه ځيره
* * *
هر څو ك چه کار کا بې مصلحتـه
هيڅ به و نه خو ری بر لـه دو لتـه
کـه بخت يې هر څو کا رونه ساز کا
خا لـی بـه نه و ی لـه نـدا متـه
* * *
هر څو ك چه لاف و هی د عشق له کاره
عا شقی چېر ې ده لا هسې خـوار ه
په مړ و ايرو کښې بخر ی چېرې(۱) وی
عا شقا ن مړه د ی ديـار دپـار ه
* * *
هـر ګو ره ښـه يې د باغ سد برګـه
سر دې را وکېښ دشېرله (۲) تخرګه
ستـا پـه ديدار مې سترګې خوږ ېږ ې
ز ړه مې را و وت د غم لـه در ګه
* * *
هر ګو ره ښه يې د زر ګر هنره
چه سيس (۳) جداکړې له سيم و زره
تـر دا دپـا سه کبو تـر بـاز د ی
دښځې هـا کـا جـدا لـه نر ه

---

(۱) = په دوهمه قلمی نسخه کښې د (چېرې) پرځای (تل) راغلی‌دی.
(۲) داسد مياشت (۳) يوقسم فلز دی .

هغــه چــه شو ی د ی دد ه لــه لوریه
هغــه بــه کــیږ ی لــه بختــه ستو ر یه

کــه دې دوستا ن دی کــه دښمنان دی
وتلـــی نه دی دا ز ل لــه توریه (۱)

* * *

هغــه چه عارکړ ی د خوشحا ل لـــهپنده
بـلا پرې وروسته اسمـا ن خـر ګـند ه

ورتــه زر ګـو نه بـلا خو لې وازې کـــا
سړ ی چــه وو ځی دنیك خوا له پنده

* * *

هغــه مــې سترګــې دی چه په ښکا رونه
غر څــه به ما لید ل په کو هسا رو نــه

اوس چــه باز وا چو م غوټه یې نه وینم
اه دپـیر ی د ی دا نـا تـا رو نه (۲)

* * *

هغــه مــې سترګــې و ې چه په ملکو نه
غــر څــه به ما لید ل په لېر ې غرونه

پیری چــه را غله چــه را نــژ دې را شی
ها لـــه ښــه ځیــر کړ م اشنــا مخونه

* * *

هغــه چــه نه لــر ی په نا م و تـــنه
و مــخ تــه مه کــړ ه دهغــه کـــتنــه

که سکـــه زو ی و ی یو سګك یې وګڼه
پــه ښــه پــه بــد یــې مه کړه پوښتنه

---

(۱) حرف ، لیك . (۲) په چاپی نسخوکښې (آثارونه ) راغلی دی .

هم مې خيالونه هم مې ښېوزده
هم مې په عشق کښې دراز پرده زده
چه يار مې نشته دا واړه هيڅ دی
که يارمې وشي يار ی مې ښه زده

* * *

هم مې دولت شته هم مې ملکونه
هم مې ځوانان دی هم‌لوی لوی غرونه
دا واړه هيڅ دی په کوم حساب دی
چه پکښې نشته ښه ښه مړونه

* * *

هند کې تورسکاڼ(۱) دی له موره‌پلاره
ښېنتا نه واړه سره سپين ای یاره
تاثير که تخم آب و هوا لری
ته واړه وګڼه له کرد ګاره

* * *

هنر مې جوړ کړ و تخت و تاج ته
طالع مې ناستې دی تاخت وتاراج ته
بل ارمان نه لرم ارمان مې دا دی
چه پيری را غله زما علاج ته

* * *

هو ښيار هغه دی چه سخت جنګونه
ترخيره را ولی په فرهنګونه
نادان هغه دی چه په کار دسولې
ګډ کا د شر د فساد رنګونه

* * *

يا ترس د خدای دی یا هو ښيار ی‌ده
دين و دنيا لره چه کا مګاری ده
هغه چه دا لری پرې مې سلام دی
په دواړه کونه يې رستګاری ده

---

(۱) توربخن .

یا ری یې نه ده دا سرا بی ده
که ودانی ده هم خرابی ده
چه زړه پرې ښه کا هو ښیار به نه وی
هستې نیستی یې په شتا بی ده
* * *

یا واړه وینې فاسدې لېرې کړه
یا له زړه لېرې د فسق خبرې کړه
یاد کوږ سرې د ربلې پرېږده
یا واړه لېرې له کوږه سرې کړه
* * *

یو بخت بل عقل دا دواړه خیزه
دموږ له بطنه وی زما عزیزه
که د ښمنتن دی که دمړ یی دی
که یې مېړ من لری که یې کنیزه
* * *

یو نیم ګړی ده دنیا نیمګړې ده
نو عاقلانو په هیڅ نو مړې ده
چه یا یې وخوړه یا یې چاور کړه
دنیا خو هغو، له ځانه وړې ده

## (ی)

آزار دا هل وماته جهل دی
خپل ځان که ځار کړم تر اهل سهل دی
دو زخ در و ښیم په دا دنیا کښې
دو زخ صحبت دسفله نا اهل دی
* * *

آزار د خولې دی آزار دلاس دی
له دواړو خلاص دی هغه چه ناس دی
سړی به نه وی هغه به دد وی
چه په دا دواړه توکه الماس دی

اس د خا نــا نــو د ی د بنو کسا نو د ی

نـــه‌دنـــا دارو دمـفلـسبا نــو د ی

مـا ړ ه خا ر بــه بنه د ی و ړی ګنده دی

ډ نــګـر د چا د ی د ګــرګسا نو دی

* * *

اصل چـه نه لــر ی اد ب هم هیڅ د ی

جمیــل چـه نه و ی نسب هــم هیڅ‌دی

چـه دانشمند و ی حـکمت هنر لـــر ی

کـه د باد شاه لری منصب‌هم هیڅ دی

* * *

افــت که ګــو رې په بې ننګی کښې‌دی

نکبت دد هر په د ل تنګی کښې د ی

مالــه دو ه رنــګـو فا یده و نــه لیده

کــه سو د دی سودی په یکرنګی کښې‌دی

* * *

امیـد کـه ګـــو رې بهــتر تر بیم د ی

عطـا پر ې مه نیسه که د ې غـلیم د ی

چـه لـه اعـدا سـره پـه مـدار او ی

دا کـار دچـــا دی کـار د حـکیـم د ی

* * *

اندو ه هــیڅ مه کړ ه خوشاله سـخ دی

خوار ی د ې و لاړ ه دو لـت تـه مخ د ی

هغـه چه تا و ته خوړ و نی سپـــی ؤ

په لیر ې لیر ې ملکو نو چـــخ د ی

* * *

اې چـــه حکیم و علیـــم د ې نو م د ی

ور کړ ې اخلـې کـار د ې مـعلو م د ی

شیر ین ژونـدو ن د ې و رباند ې تریخ کړ

خوشحا ل چه نه و ژنې حکمت‌دې‌کوم‌دی

اې چه دو لت لرې بد دې خصلت د ی
دو لت به با یلې بنه نصیحت د ی
باز چه له بده باز دار ه و لا ړ شی
وبه یې نه نیسی دا تجر بت د ی
* * *
اې چه رحما ن او ر حیم د ې نو م د ی
عظیم بادشاه یې کار دې معلو م دی
نا دا ن په تا ج کړ ې دانا محتا ج کړ ې
ما پر ې خبر کړ ه حکمت دې کوم دی
* * *
ایمان دسر و ز رو تر غرو نو بنه د ی
منا فقا نو و ته هیڅ نه د ی
لا ل در چه پیش نې هغو یې قدرزده
چه شنا خت یې نه لری سوړیې ترې زړه دی
* * *
باړ خویې نه دی ګل دګلا ب د ی
زلفې یې طعن دمشک نا ب دی
راشه که دوا ړه شو نډ ې یې ګورې
چه پر ې مستیږ ی هغه شراب د ی
* * *
با غ په خو بی لکه مخمل د ی
را سر ه ګو ره یو څه مخ مل دی
سا قی را پا څه مینارا واخله
پر خه و ر یږ ی ګل دی حمل د ی
* * *
با غ د ګلو نو کو نج وکتاب و ی
رو دو سرو دو نقل و شرا ب و ی
ښې ښې محبو بې ښه ښه احباب و ی
خو بی د عمر و خت د شبا ب و ی

باغ وی سرو د وی نقل و شراب وی
ښې ښې دلبرې ښه ښه احباب وی
مجلس د خاصو کتاب په منځ کښې
نقل د تورو وخت د شباب وی
* * *
بلبل د ګل دی ګل دبلبل دی
بلبل هورې غواړه هورې چه ګل دی
مینه به پټه د هیچا نه شی
خپل بوی د مشکو په ځان چغل دی
* * *
بنیاد دچارې په مصلحت دی
بیا دمردانو په ښه همت دی
چه سره یو شی دا دواړه توکه
واړه دولت دی عزت حرمت دی
* * *
بیا مې له بخته مدد خرګند دی
خوب کړم خوښی کړم زړه مې خورسند دی
چه خوب مې نه ؤ دده له غمه
تر سر مې لاندې هغه مړ و ند دی
* * *
پاداش د هرې چارې تیار دی
که نیک کردار دی که بدکردار دی
چه ترس د زړه لری دا کار به ښه لری
خو بې پروا دی هومره یې زار دی
* * *
پښتون په اصل سړ بنی دی
یا غرغشتی دی یا بیټنی دی
لو دی غلجی دی دبیټ له لوره
په سړبنو رې بیا کرلانی دی

پنځــه با رو نه د ی بر دن يې غـــم دی
ور مــېږ دخلکو تر ې لانـــــد ې خـــم‌دی

پنځــه په نو رو د ی پــه تا دوه کـــــم‌دی
خوشحــا لــه شکر کړه چه بار دې‌کم‌دی
* * *

پند دســړ ی دی ســړ ی د پنـــد د ی
پر ې به پو هــېږ ی چــه دا نشمند دی

سړ ی پــه پند نیسی ښارو ی په بندنیسی
وهــر سړ ی ته دا کــار خــر ګنــد د ی
* * *

پــه پو هــه پور دی هر یو ز و ولـــی
وځــا ن تــه نه وایی هېڅوك غــو ولی

هغــه چـــه خر پیا یــی یا چه حکمت‌وایی
هــر یو فلــك د ی سر ه رســـو ولی
* * *

پــه خپلو اوښو کښې سړ ی شناښه دی
لـــه هره هره سړی آشنــا ښــه‌دی

کـــــه ګــل له نو رو و ی اغزی له یاره‌وی
منت تر هر چــا (۱) دخپل آشناښه دی
* * *

پــه خصلتــو نــو کښې عدل انصاف ښه‌دی
لــــه ښو له بدو سره زړه صاف‌ښه‌دی

چه‌څوك دې غاښ‌مات‌کاته‌يې هم غاښ‌مات‌کړه
که عذر خوا ه شی غاښ يې‌معاف‌ښه‌دی

---

(۱)په دریمه قلمی نسخه کښې د (هرچا) په ځای (هرڅه) راغلی دی.

په دا خبر شه چه سړی څه دی
سړی د غشی کږه در مه دی

چه بې استاذ وی لا غشی نه دی
چه ښه یې ساز کا غشی‌هاله دی
* * *

په ډېره پوهه که بوعلی دی
چه جو د یې نشته احمق جلی دی

که کلمه لولی عقل یې مه ګوره
چه څوك یې نغن خوری هغه ولی‌دی
* * *

په سوات وړېږی په سمه شین دی
تر غره به‌کوز شی لا ماسپښین دی

بیا د تالی دعبدل(۱) لښکر ې
خو شحال له زړه دې له واړوشین‌دی
* * *

په عاشقانو آرام حرام دی
عاشق یې مه بو له چه په ارام‌دی

په عشق کښې شرم په ننګ‌کار نه‌لری
ددواړو تو کو یو خالی جام(۲)دی
* * *

په ما دا عدل که دا ستم دی
چه غم په ما باندې په هرهردم دی

واړه مې خپل دی پر دی څوك نه دی
چه یې له ما سره دا هومره غم دی

(۱) تالی او عبدل دیوسف زو ملکان وو .
(۲) په دو همه قلمی نسخه کښې (نام) راغلی دی .

پیوند د زړو نو عجب پیوند دی
په کتره غو ښه و بله بند دی
څو چه وفا وی هو مره ټینګیږی
جفا یې پرې کا، کار یې څرګنددی
* * *
پیوند دمینې هم ټینګ هم سست دی
جفا یې پرې کا په وفادرست دی
ډېرو له ما نه په جفا پرې کړ
اوس خو د لړ و څه خوامست(۱)دی
* * *
تر لال و درو عقل تمیز ښه دی
دبل تر مهره خپل یوپشیزښه دی
چه خبر دار دی د صحبت په علم
تر بې اد بې خبرې تیز ښه دی
* * *
تری که بد دی خو بیا همجد دی
هر چه همجد دی هغه امجد دی
بو لاق که هر څو ختك یا دیړ ی
دسبا کی دلو ر یه بد دی
* * *
تل تر تل مې و ر پسې غم دی
مینه یې د ېره را حت یې کم دی
چه نه یې و ینم په ستر ګو تو رو
دا جهان وا ړه په ما تور تم دی
* * *
تن بیا خپل بخت ته زما تسلیم دی
خر م به او سم فا ل مې د میم دی
په در دو غم کښې زما غلیم دی
را الو تلی دنصر ت نسیم دی

---

(۳)ګډون، پیوند .

تو ري دي زلفي دی تور دي وربل د ی
مخ مې د ي و لید ه لکه اوربل دی

هم تور لوگی دی هم سرې لمبې د ی
دغو بنو ز ړه مې پکښې قبل (۱)دی
* * *

جدا چه نه شی ترې او سپن خړ ی
ترې پا تې نه کا دپونده ی ز ړ ی

په څه به ساز ه شی ترې تېره توره
فکر د ي بنه وکا استا ذ زوی مړی
* * *

جنت د چا د ی دحق شناس د ی
دو زخ دچا دی دنا سپاس د ی

گانده به نو ري فتنې پیدا شی
کار کړه که کار کړې چه نن دې لاس دی
* * *

جنت د چا دی دصادقا نو د ی
دو زخ دچا د ی دکا ذ با نو د ی

قر آن چه لو لی کذاب عذا ب مو می
ثواب بې حد ه که د قر آنخوانو دی
* * *

جنگك دها تی دمز ری اسا ن د ی
دخپلې ژ بې افت لا گرا ن د ی

چه خپله ژبه یې په خپل فرمان کړ ه
هم یې رستم گڼه هم لا لقما ن دی

---

(۱) نښتی ،گیر (ظفر اللغات ) .

چه درست گلزار دی داتفاق دی
چه درست خار خار دی گنده نفاق دی
خار دې په برخه د خار کښا نو شی
هو ښیار د گلو د گلزار مشتاق دی
* * *
چه فهم درست لری هوښیار هغه دی
چه فهم سست لری حمار هغه دی
او به چه لړ ې وی او دس پر ې نه کېږی
چه پر ې پا کی مومی رو دبارهغه دی
* * *
چه لاس مې نه رسی غلیم می یار دی
چه لاس مې و رسی غلیم مې پلاردی
داپند به نه مو می په شا هنامه کښې
په شا هنا مه کښې که ډېر اسرار دی
* * *
چه مې په غېږ کښی یې ساعت همدادی
ببلتو ن د ې بلې لمبې په مادی
پا خه ور د رو مه په سر دې وېره کړ م
ز ه یې سبا گڼم وخت د سبا دی
* * *
چه نن دې یار دی گانده اغیار دی
گانده اغیار دی چه نن د ې یار دی
خدای چه زړو نه سره جار باسی
دا زړو نه کله په اختیار دی
* * *
چه نه ادب لری نه اهل رای دی
دو پا ی لید ل شی په خوی چارپای دی

سړ ی په خوی سړ ه سړی بلل شی
په رنګ په شکل سړ ی د خدای دی

چه نه ددین دی نه ددنیا دی
هغه که گر ځی په کار (۱) دچا دی
پر پښ ده چه و مری جهان ترې خلاص‌شی
په دا جهان کښې یوه بلا دی
* * *
چه هر سیرت دې په وجود غالب‌دی
په هغه رنګ دې حشروا جب دی
حریص به خوګ وی‌حاسد به‌ګرګ وی
په رنګ ددوا ړ و خبر طالب دی
* * *
چه یې و هلی قلم مطلق دی
ایمان که حق دی په کافر ناحق دی
په چا سهار شو پرې رو ښنایی شوه
په چا شپه را غله باندې شفق دی
* * *
ځان وجهان لره په کار سلوك دی
ملوك چه ښه لری سخ دمملوك دی
ملوك دې ښه وایی پوچ پوچ دې‌نه وایی
دملوکانو کلام ملوك دی
* * *
څوك چه اشتی غواړی که دې غلیم دی
«والصلح خیر» ځای د تسلیم دی
عفوه بهتره تر انتقام ده
نیکی په بدو کار د کریم دی
* * *
څوك چه دنیا غواړی هغه رنځوردی
هر چه عقبا غواړی هغه مزدور دی
هرچه مولی غواړی تر هغو ځار شم
هغه په دواړ و کونو مسرور دی

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښې (په یاد) راغلی دی .

حب ددنیـــا د ی چــه څـــه بــلا د ی
چــه څه بــلا دی حــب ددنیـــا د ی
هــو مره رسو ا د ی دا حــب چه څو مر ه
دا حب چــه څو مره هو مره رسو ا دی
* * *

خال دې د ز ړو نو په دا غــل راغلی د ی
دننــه ز ړه یــې زمــا دا غلــی د ی
چه ښه جما ل لری هغــه ښه خال لر ی
مــخ دې ښا غلی دی خال دې‌ښاغلی‌دی
* * *

خــزا ن بـــهار د ی بــهار خزا ن د ی
هجرا ن وصال‌دی وصال هجر ان د ی
شپــه شی بیا و رځ شی ، دود د جهان‌دی
غم چــه ښا دی لر ی کار یــې‌اسان‌دی
* * *

خوب د سهار کــه هر څو محبوب د ی
سړ ی چه ویښ شی سهارلاخوب(۱)دی
دنیا به پاتــې شی ددنیــا عیشو نـــه
هغــه جها ن لر ه طا عــت مطلــوب د ی
* * *

خوب دی درو غــو ، نــه د نــا رو غ د ی
خو ب د در د منــو ز ړو نو درو غ د ی
لکه په ویښه وی هسې په خو ب و ی
چــه چا مو ند لی د ز ړه فــرو غ د ی
* * *

خوږ تر شکــر و بــحــر شکـــر ف د ی
خــو شبــو تر مښکــو صفا تر برف د ی
کاسی ، څو مونــه ،کو زې څــه حرف‌دی
راو ړه اخلــه مــدار پــه ظــر ف د ی

---

(۱) : ښه .

خوشحا ل غر یب د ی د ر ویش ګـدادی
خپـل حکم نه لری د یار پـه رای دی
چـه چـېر ته حکم هو ر ي بـه درو می
چــــه کښېـنو ی يې هغه يې ځــای دی
* * *

خوشحــا ل کــه هر څو فا جر فا سق دی
عیــب يې مه کړ ه شیخه عا شق د ی
چـه پار سایان دی په خپل خدمت به ځي
دخدای دفضل فــا جـر لا یـــق د ی
* * *

خو شحا له څو دې جو ش وخروش د ی
نه دې څه عقل شته نه دېڅه هوش دی
هو مره ته نه یـې په ځــا ن غره مه شه
دخدا ی کر م د ي لا پرده پــو ش دی
* * *

خوشحــا لــه عمر د ي تر شپيته تېر دی
نېکـی د ي لــږ ه ګــناه د ي ډېــر د ی
دفتــر دي ډ ك د ی د ګــنا هــو نـــو
درتــه به یاد شــی کــــه د تا هــېردی
* * *

خوش رنـګ تر با زه مر غ ز ر ین د ی
باز مي په قدر کښې تر يصدچندین دی
څه شو کــه لوی لوی وزر پري پوريوی
ګرګس ګرګس د ی شا هین شا هین دی
* * *

خو يــوه ســا يــې بـود دي هــمدا د ی
يو مو تــی خاو ري جود دي هم دادی

نور سو د د ي نه وینــم پــه دا دنیاکښې
کــه څه نیکی وکړې سود دې هم دادی

دا آسمان نه دی یو خو نی پړانګ د ی
را تــه غږ مبـېږ ی تل‌تل په بانګ‌دی

خوله یـې سره کړې ددا را پـه وینو ده
شفـق ته ګوره دا ووی په ټانګ(۱) دی

* * *

دا چـه و تـا تـــه د دیـن اخص د ی
کـــه پر ې خبـر شې کا فر دنص دی

پـــه نو رو حکـــم د (الـن تنا) کـــا
د (لـکنـود) (۲) دا یت مـختص د ی

* * *

دا خوار خـا طر چه پـه قمر نهال دی
دسمنـد نال یـې پـه دا مـشـا ل د ی

مـېږ ی چـه و ا خلـی دا نـه و غار ته‌ځی
ستـا می اخیستی وګـور ته خال د ی

* * *

د آسما ن د و ر خـا لـی رو نـق ذی
ور کـــا بیا واخلی دا یـې نسـق د ی

لکــه یــې را کړ ل هسې یـې واخیستل
اوس را تــه پا تـې دا یـو ر مـق دی

* * *

دکور پر پـښـونـه شـر م پیغـور د ی
هر ځـای چه و زېـږ ې هغه دې‌کوردی

په هر ، هر کال یـې په ځاله تا خت کېږی
هغـه شا هیـن د ی هغــه یـې‌کوردی

---

(۱) ووی ، قول ، خبره ــ ټانګ = موقع

(۲) تلمیح ده د قر آن شریف دې آیــت ته (ان‌الانسان لربه لـکنود)
تحقیق انسان د خپل رب نا شکره دی .

دماد یــار پــه یــا ری کــا ر دی
کــه مسلما ن دی کــه زنــار دار د ی

کــه مهــر مینــه وفا را ستــی لــر ی
نور څــه یــې مه ګو ره چه پوره یار دی
* * *

دما ښــې خو ږ یــې هر ګــو ره ګرا ن د ی
خوږیــې دتورې پرهار په شان دی

پــه څو پــه خپلــه را غلــــه پو خلا شوه
خوشحال که زو ږ دی باطنېې ځوان دی
* * *

دملو کا نــو صحبت ســور او ر دی
دا و ر سکرو تــه ددو ی بــېوور(۱)دی

کــه تور ها تــې یــې که سور مز ری یې
ستا یــې لــه او ره سره څه زور دی
* * *

دوړاند ې ایــښی در تــــه یو خوا ن د ی
نعــمت یــې ګــوره الوا ن الوا ن دی

ته به تر ې پــا څــې بل به پرې کښېنی
لــه واړو پاتــې دا خوا ن داشــا ندی
* * *

دو لت پــه مــثل مرغــه د ښکار د ی
باز دی ، شا هین‌دی ، چرغ‌دی،شنقاردی

لــه لا ســه تللــی مر غو نه څوك نیسی؟
دښکا ر مر غــه مــې د ښه میرښکاردی

---

(۱) مشغولا .

دو لت د خلک په اتفاق کښې د ی
هغه به خوار شی چه په نفاق کښې دی
زوړ شو م یو یار مې یك رنګ ونه لید ه
زړه مې تر اوسه په اشتیاق کښې دی
* * *
دهر چا قدر په خپل همت د ی
دهر ې چار ې مدار په نیت د ی
دنیکو فعل د ځا ن را حت ګنه
دبدو فعل دځان زحمت د ی
* * *
دړ یغه جا و ید ه ځوانی بقا وی
دښو دلبر و دید ن لقا و ی
ډ ك ډ ك جا مو نه تر یو ته تل نیوی
دمهتر خضر داو بو سقاو ی
* * *
دړ یغه له ځایه هسې هو ښیار و ی
لکه چه اوس یم خپل مې اختیار وی
را ته ښکاره شو ه یا ری د خلکو
نه دچا یار و ی نه مې څوك یار وی
* * *
دړ یغه وړه مبیه عمره و رو ستی و ی
دریغه وروستیه عقله ړو مبی و ی
دیار عتاب مې قبو ل په ځا ن د ی
په عا شقانو دا دود (۱) روان د ی
* * *
هغه بیا نه را ځی په دا هیڅ کارنه شی
په دا به پو ه شې که ښه سړی وی
هم یې و صال شته هم یې هجران دی
جنګ چه اشتی ارو ی کار یې آسان دی

---

(۱) په دریمه قلمی نسخه کښی د دود په ځای (دور) دی

زړه په وجود(۲) کښې لکه بادشاه دی
ولاړ په فکرو نو سبا بیګاه دی

سترګې غوږو نه ژبه دا درې دی
خانان، نور واړه و جود سپاه دی
* * *

زه یې میلمه یم زړه مې میزبان دی
را باندې هرکله دده احسان دی
په هر زمان یې راته سلاده
راته یې ایښې دمعنو خوان دی
* * *

ژوندی که ګر ځی ځان یې ژړلی دی
تور زن دسر په وینو لړلی دی

چه صبر نه لری ظفر به نه مومی
ظفر له صبر سره تړلی دی
* * *

ساقی راپاخه چه بیا نوروز راغی
ګل په ګلشن کښې جهان افروز راغی

غم دې په بخره ددښمنانو شی
فال ددوستانو عجب فیروز راغی
* * *

ساقی راپاخه ګل او ګلاب دی
په باغ و راغ کښې لاله سیراب دی

په واز و سترګو په انتظار کښې
هم درباب دی هم د شراب دی
* * *

---

(۲) په دریمه قلمی نسخه کښې دامسره داسې ده : زړه مې په تن کښې لکه بادشاه دی

سخ دهغه دی چه ښه یې نیت د ی
نیکخوا ه د خلك په ښه خصلت دی
تل یې په علم په طا عت مت د ی
حاصل دعمر علم ، طاعت د ی
* * *
سر دار د عفو د کر م ښښتن ښه دی
د جنګ تر کا ر په آشتې مین ښه‌دی
ډېر هنرو نه د سر دا ری د ی
چه وا ړ ه تېر شی تیغ مبر هن(۱)ښه‌دی
* * *
سر شو ی په غا ړ و غرو نه ژړ لی
دو نو پا ڼې ما ڼې خو ړ لې
د اشنا یی پیو ند مې ولیده
نا بو د پیو ند د ی په وینښته‌تړلی
* * *
سړ کا ل چه کال در حمت‌تم(۲) د ی
با ران په هر چېر ته په غره په سم‌دی
پس له شپږ میا شتو په چنګاښ(۳)شروع شو
په هر ه ورځې تر نیم ضیغم (٤)دی
* * *
سړ ی په مثل د ګبینه د ی
شر م په ده کښې لکه خوا ږه د ی
خوا ږه چه نه وی په ګبینه کښې
قدر د ژا و لې بې خو ږو څه د ی

---

(۱) مبرهن = ښکاره
(۲) رحمت تم = ۱۰۸۸ هـ دابجدو په حساب
(۳) = دسرطان میاشت .
(٤) داسد میاشت .

سړ ی کـه ښه دی پـه ښه ګفتار ښه دی
ګـفتار که ښه دی په ښه کردار ښه دی

ګفتار صورت ګڼـه کر دار معنـی د ی
چـه سره یو شـی دا دوا ړ ه کار ښه دی

* * *

سـړ ی که ښه دی چه دینـدار نه د ی
کـه د ېر په کار د ی هم په کار نـــه دی

توبنـه طاعت دی له د ې جها نـــه
جـهان په هیـچا باند ې پا یدار نه دی

* * *

سفلـه په مـثل لکـه ډېـرا ن د ی
دولت پـه مثـل بانـد ې بـاران د ی

با ران چـه نه وی بو ی یـې در بلی دی
باران چـه وشی بو ی یـې روان دی

* * *

سل دو ستا ن (۱) لږ دی یو دښمن بد د ی
چـه ډېـر د ښنه لر ی ځای یې لحد دی
پـه ښـه سلوک سر ه پر دی خپلیـږی
چـه خپل پردی کـا کـله بخر د د ی

* * *

سو زم بـې تا نه پـه لمبـو ګـو ښـی
خــو ب وارام د ی را ځنـــې تـښـی

مـخ را عیا ن کړ ې بیـا یې پټ نه کړې
تـا یم دا هسـې پـــه لمـبو ا یښـی

---

(۱) دپښتو ټولنې په دوهمه قلمی نسخه کې (خپلوان) راغلی دی .

سهار سبا شو وخت دبا مداد دی
را الــو تلــی د سبــا بــاد دی
خــو شبــو یــی راو ړه دیار له لور یه
په خوشو رنگ می خاطرپری ښاددی
* * *
شرم دی ننگ دی کـه دار د سر دی
سمه مـی پـر ښنوه ځای می تل غردی
ښنستانه واړه دمضـو ل ښور وا خـو ری
ماتــه یــی پا تی دا شــور و شــر دی
* * *
شیطا ن هر گــو ره ښا یستــه رو غ دی
چه یــی بد رنگ بولی دا ووی دروغ دی
بد رنگ پــه داشو چــه بد رسوا شو
پری ی در پــد لــی د لعـن تــو غ د ی
* * *
ښا یست دښــځــی دمار یکسا ن د ی
ظا هر یی مه گوره با طن یی وران دی
ښــځه په زړه کښی خوخو بــلا لــر ی
که ما رپــه خولــه کښی ذز هروکان دی
* * *
ښکاره پــه هر شــه د چا ری بنــد د ی
قدر لــه ښځــی دمرد دو ه چنــد دی
ځینی سړ ی دی چــه زیر ه بر یت لر ی
جو ړ یــی له ښځــی سره پیوند دی
* * *
ښــه خو شه دی چه په هیڅ خبر نه دی
پــــه غـم په فکر د سیـم و زر نه دی
جلا لــه خلکــه په کونج کی او ســـی
خو لا یــی چا کر نشته دچا، چاکر نه دی

بنــه خو هغــه د ی چــه دچاړپه چړته دی
کــه دو ګړ ی په شور و شر نــه دی
څــا ن پــه ژوند ونی دمړو په شمار کړه
نیستــی هستې ده خو ك پرې خبرنه‌دی
* * *
صحبت لــه جنسه لکــه ګــلاب د ی
دنــا جنسا نو صحبت عــذاب د ی
کس به نا کس نه شی ناکس به کس نه‌شی
تو تی تو تی دی ، غراب غراب(۱) دی
* * *
عابد (۲) بې بنده هم بــې پیوند د ی
مور پــلار یــې نشته پیدا له شخوندد ی
سړ ی لــېد ه شی که خو ی یــې ګورې
لکــه چــه ددو ی هستــې بــې سند دی
* * *
عادت چــه بد لر ی ځان یــې ژړلی د ی
عادت چــه بد لر ی‌سر یــې خوړلی‌دی
عادت په پــند نه ځــی عادت په بندنه‌ځی
عاد ت لــه سره ،سره تــړ لــی د ی
* * *
عا شق خپل کار کــا شر م پیغور څه دی
چه پرې مین‌شوې د لبر سپین‌تورڅه دی
زنپــق تــه ګو ره سو سن تــه ګو ره
کړه وړه څه‌نور څه‌دی‌نمك څه‌نورڅه‌دی

---

(۱) کارغه ، (۲) په دوهمه قلمی نسخه کې دعابدپه ځای‌بهرام‌راغلی‌دی.

عز ت د زرو دپـر د ی عـز یـز د ی
هغـه چـه زر سا تی صاحب تمیز دی
که هر خو ښـه د ی پـه حقیقت کښـې
زر عـا قـلا نـو و تـه نـا څـیز د ی

* * *

عقـل دمـځکـې یـا داسـمان د ی
چـه دوا ړه نه لـر ی هغـه حیوان دی
عقـل دمـځکـې د مـو ر د نسه د ی
چـه داسـما ن د ی ددبستا ن د ی

* * *

غـم د گنـا ه مه کړ ه ګـناه قر بت دی
ګـناه هغـه بـد د ی چه قطعیـت د ی
که ښل نا ښاز ي پـه ناز معشو قـه کا
څـه شو په کار یـې ستر عفـت د ی

* * *

فرزند یو پـړو کـی د پـلار له ځانه دی
د پـلا رد غـو ښو داستخوا نـه د ی
دپـلار په خو ن و چه پروا دار نه و ی
لـه پـلا ره نه دی ګو ره لـه چانه دی

* * *

فلك یو سـتـر ګـی کـهنه تیر ګر (۱)دی
دده پـه هر هر لر ګـې نـظـر دی
زیا ت پـه دا دو ر چـه رغـو ی یـې
دسرا غـز یو پـه غیشـو سـر د ی

* * *

قرار پـه دا لـر م حا ل مـې عیان دی
نو م مـې دخان دی کار مې بل شان دي
نه مـې ز کو ة شتـه نه سر سا یه لر م
نه مـې اختر شتـه نه مې قربان دی

---

(۱) تیراو یشتونکی .

قوت مې لېږ شو نفس مې لنډ دی
وتې تر ې نه شم دسر پښو ونډ دی

مزل مې اوږ د دی کـه رو غ ترې ورسم
په سر مې ایښی دسر پـښو پنډ دی

* * *

کری (۱) په رنګ دتو تـا نمـو دد ی
په رنګ مـد ارنه دی هنـرمقصود دی

اصل پیـدا کړ ه هنـر خصلـت راوړ ه
چـه ا صـل نه لر ی هغـه مر دو ددی

* * *

کفـر پـه بخر ه د کا فـرانــو د ی
اسـلا م پـه بخر ه دمو منـا نـو دی

چـه هیڅ پـه کفر اسـلا م خبر نه د ی
کما ل دکفـر تر نا قـص دین ښـه د ی

* * *

عـشق مـې په بخـر ه دعـا شقا نو دی
یا درست ګومان ښه دی‌یادرست‌یقین‌ښه‌دی

چـه کلـه دا شـی کلـه هغـه شـی
دا نا تـــه کلـــه مذ بذ ین ښـه د ی

* * *

کنـګا ش پـه مـثل دسودا کار د ی
کـه پـه سو دا کښې فایده دینار دی

اهمان (۲) پرې نه بو یه سو دا سود منه ده
چـه پر ې اهــما ل کا کله هوښیاردی

---

(۱) کری = پوشین رنګه مرغه دی .
(۲) اهمال : غفلت .

که باد شاهی غواړي کار يې‌اسان‌دی
تسخير د زړو نو خلق و احسان دی
لښکر چه وشو طالع دې ملې شوې
دا دا و د هش کړه خپل دی‌جهان‌دی
* * *
که باد يې يو سی په هواخس‌خس دی
که شکر خو رشی مگس مگس د ی
که يې دو لت و شی که دانشمند وی
دا يې هيڅ مه گو وه‌ناکس، ناکس‌دی
* * *
که پرې پو هېږ ې دا کار څرگند د ی
پند د سړ ی دی سړ ی د پند دی
په دا خبرو کار دنادا ن نشته
پر ې به پوهيږ ی چه دانشمند د ی
* * *
که پلار که زو يه که ورور که‌ياردی
په دا دنيا کښې سره يوکار دی
که سود يې نه رسی په دا دنياکښې
ژوندو ن يې مه وه عمر يې خواردی
* * *
که تور ها تی د ی که سور اسد د ی
نور څه يې مه گڼه د گور لحد د ی
غوښې هډو نه يې د خلکو و خوړل
پر ې نه مړ يږ ی هرگوره بد د ی
* * *
که د جتيا نو څه بر کت و ی
يا يې څه عقل څه مصلحت وی
دهندو ستا ن سره دهيچا کار نه ؤ
ږ غ هم دد يو د سلطنت و ی

که د غلیم سره جنګ او مصاف ښه دی
که مړ دې يې زړه خو ورسره صاف ښه دی
ما چه نظر وکړ چه تجربه وشوه
دهر ې چارې عدل انصاف ښه وی

* * *

که دې راحت دی که دې محنت دی
که دې رحمت دی که دې زحمت دی
که خاندې خانده که ژاړې ژاړه
دا به دې تل وی که دې صورت دی

* * *

که دې نیت ساز دی عمل دې ساز دی
که دې روژې دی که دې نماز دی
مدار په نیت راغی مراد په نیت راغی
دین او دنیا لره په نیت کښې راز دی

* * *

که راته غوږ کړې یو نصیحت دی
نه دې بد خواه یم نه خدیعت (۱) دی
بار دفکرو نو په زړه هیڅ مه ږده
هغه به مومې چه دې قسمت دی

* * *

که رنګ دې سپین دی که رنګ دې تور دی
په دا هیڅ نه شی مطلب خه نور دی
بوی په نافه کښې وینې په قدر کا
شمشاد بې بویه دچندن پیغور دی

* * *

که زړه مې دا دی غلیم زما دی
غلیم زما دی که زړه مې دا دی
مین په چا دی د چا اشنا دی
دچا اشنا دی مین په چا دی

---

(۱) چل ، فریب .

که سخا و ت د ی کــــه شجاعت دی
زمو ږ پــه کور کښې ځایی خصلت دی
چــه دا یــې نه وی له مو نږ یې‌مه ګــنه
ګــوره په ځان کښې یې یوځه علت دی
* * *

کــه سود د ی سود دی دسحر سجوددی
بهتــر تر در ستــې دنیا دا سود دی
نه به تــه تــل وې نه به د ې سر وی
سجود لــه سره ، سره مــو جود دی
\- * *

کــه فــهم وکړ ې ستــر ګو ته خس بس‌دی
نعمت چــه رد کا و رتــه مــګس‌بس‌دی
ایما ن ډېــر ښــه د ی هم ډېر قو ت‌لری
زوال‌یــې مه وه و رته وسوس‌بس‌دی
* * *

که لوی نعــمت دی درو غ صو رت د ی
کــه لوی دو لت دی دنیکو نیــت دی
چــه دا یــې نه وی مز ه یې مه غواړی‌ء
کــه باد شا هــی ده کــه سلطنت د ی
* * *

[illegible] ني دی کــه درو غجن د ی
رینښتنــی کلــــه پــه مخ خــیر ن د ی
په صف مــې مــه کړ ه ددرو غــجنـــو
کــه دګــنجو نو دو لت ښښتن دی
* * *

که مرګ دلو ړو د شــوار فرقــت د ی
ژوندو ن د لــوړــو هــم مصیبــت د ی
چه کور یې لوی وی شر شور یې لوی‌وی
چه کور یې کــم دی یو لوی نعمت‌دی

که وروړ ناکس د ی په خوی کښې کس دی
دا خوی بـه د ی لر ی ور لــر ه بس دی
دمشر و روړ بـه ادب پـه ځای لــر ی
ناز بـه دکشر ور ی څو یې دسترس دی
* * *
که هغه یار مې را ضی پـه مــرګ د ی
دا دی نــېولــی مــې ورته تخرګ دی
غشی د ې ښــه په سو هان تــېر ه کا
چېر ې به بندشی تو برې یې بغرګ(۱) دی
* * *
ګنج دځــوانــی تر چــل و پنــ ج د ی
بهتــر دسیــم و دزر تر ګــنج د ی
ځوان په افلاس کښې د ځوانی(۲) خوښ وی
زوړ کــه باد شاه وی زړه یې ترې رنج دی
* * *
لاس مــې که هر څــو په دنیا ښخ د ی
نه چــه دو لت مــې دغا ړ ې مخ د ی
زه یــې مــېړ ه یم دنیا مــې ژګه(۱) ده
زړه مــې په هر څه وربانديې یخ دی
* * *
لکه چــه ډېر د ی نــېک بخت عاقل وی
بو یــه لو یــې مې اوس یو پــه سل وی
ډېر ش دی که څو دی دریغــه ارمان د ی
په هو مره زو یو کښې یودوه قابل وی

---

(۱) بغرګ دغبرګ بله لهجه .
(۲) په دو همه قلمی نسخه کښې دامسره داسې ده: ځوان په افلاس کښې دخانه خوښ کا .
(۱) ژګه نکاحی ښځه (ظفر اللغات)

لګړ که هر څو تـر باز تـېز پـر دی
پـه هره چار کښـې دبـا ز نفـر دی
کوتـه که هر څو تر تا زي ښـه زغلي
بیـا خوپـه قـدر تر تاز ی کمتـر دی
* * *
اـو ګـی که هر څو دا ور فر زنـد دی
کار یـې بوهـرچـا وته خـر ګـند دی
چـه نور یـې نشتـه اور با لـه نه شي
څـه شو که پور تـه پـه باد بلنـد دی
* * *
لو یـی پـه خدای ښا یی چه ذوالجلال دی
څو و رتـه خوا ست کړي هومره حلال دی
دا نور خواستـو نـه وا ړه حرام دی
کـه لږو ډېر دي وچا تـه سوا ل دی
* * *
مـېړ پـه هنـر کـړ ه هنر پـه کار دی
مور پـلار به څـه کړي هنر مورپـلار دی
فخـر په زر مه کړ ه پـه ښـه پدر مه کړه
فخـر پـه دا کړ ه کـه هنر دې یار دی
* * *
مرد څـو غیر ت لری هو مره بهتر دی
څـو صدا قـت لری هـو مره بهتـر دی
څو جنګیا لـی وی څو ننګیا لی وی
څو سخاو ت لر ی هو مره بهتـر دی
* * *
مرګ وای هـم رنـځ وای هم نا توانی‌وای
عمر په غـم کښې په پریشا نی وا ی
دښـو ښو جـو نـو دیـد ن د پـار ه
یا سل یـا دو ه سو کا لـه ځوانی‌وای

مه کړه نادانه دنه کړو کار دی
داچه پرې خېژی غا بنسی د شوار دی
خر دې کمزوری زبون لیده شی
چه دې پرې ایښې دا هومره باردی
* * *
نظر د هر چا په خپل بهبود دی
په زړه د هر چا خپل خپل مقصود دی
هریو په زېر مه د خپل وجود دی
هر څوك هغه کا چه خپل یې سود دی
* * *
نن شپه مې تللی له دله زنګ دی
دشاه په زلفو مې وهلی چنګ دی
تما مه شپه یې په سینه پروت وم
را پورې لا ړه د زعفرا نو رنګ دی
* * *
نن مې وځان ته دا نصیحت دی
امید په زړه کښې ګنده زحمت دی
امید چه پرې کړې له غمه خلاص شې
دنه په ملك کښې عجب راحت دی
* * *
نه یې حساب شته نه یې شمار، شماردی
خلق د تمې له لاسه خوار دی
سړی به څه وایی ما هسی مرغونه
په دام چه بند شی دتمې کار دی
* * *
نیاز دبې نیازو سره دکړو نه دی
دبې دردانو منت دوړو نه دی
تباخ که خوږوی چه جوته شوی وی
که مرې له لوږې هم دخو ړونه دی

نی چــه واهــه شی ؤایی عــذاب د ی
چــه غیبتو نه کړی مــګر ثــواب د ی
غیبــت تر زنا نــه تــېر ی یــا دیــن ی
نی منــع شو ی پــــه کو م کتا ب د ی
* * *
واده ځو ك مه كا نـــیء واده بــلا د ی
غــصې یـــې ډېرې دی غم یې والا دی
چه دعیال پــه زنــځیر ځو ك بنــد شو ل
تــر هــره بنــد ه دابنـــد بـــلا د ی
* * *
وجـــود پـــه مثـــل د ګبــېنــه د ی
ځوا نـــی یـــې څــه د ه لکه خوا ږه دی
خواږه چــه و لا ړ شی پاتې یې ژاوله‌شی
قــد ر د ژا ولــې بـــې نخو ږ و څــه دی
* * *
وخت دزو ړ وا لـــی د ی دځوانی نه دی
کــه دې د ځوانـــې په یاری ز ړ ه دی
جو رو جفـــا یـــې و ړه و رتــــه نفراوسه
داکار پــه عشق کنبې ورسره بنه دی
* * *
ها تی تــه ګو ره حال یې معلو م د ی
خلوړ یـــې پښې د ی یویې خرطوم دی
که یو یـــې نه وی پــه داپنـــځــه کښــې
که‌هست که هست دی نیستو معدوم‌دی
* * *
هغــه چــه خدای بولـــې په هر هر ځای دی
ځینـــې ګرګس دی ځینـــې هــما ی د ی
چه سر ې بو ټــی خو ری هغه ګرګس‌دی
چــه وچ هډو نه خو ری هغه همای دی

هغه چه لمونځ نه کاکه دې خپل پلار دی
ادب یې هیڅ مه کړه په دین کښې خوار دی
پرېږده چه و مري زړه سوی پرې نه بویه
که په فاقه کښې لیل ونهار دی

* * *

هغه مړ ی نه دی هغه کفتار دی
چه بل غم نه لري غم یې د غار دی
چه یې له ماتې ګېډې هم واز دې خوری
که ښه دی ښه خو د مړ یو ښکار دی

* * *

هندو چه بت وته هسې نسکوردی
مومن مخ ایښی د کعبې په لور دی
دا دواړه تو که رسم و عادت دی
او ده عالمه مطلب څه نور دی

* * *

هنر جو هر راوړه دلو یې ستوری
که دا دې نشته نه یې کمزوری
هسې به او سې که عقل هو ښ لرې
چه دخندا نه شې کاسه نسکوری

* * *

هنر چه نه لري که دې پسر دی
سړ ی یې مه بو له یو ګاو و خردی
که هر څو زور لري که هر څو زر لري
تر دا همه واړه بهتر هنر دی

* * *

هنر چه نه لري که مې پسر دی
چه څوك یې یاد کا درد مې دسردی
که بېګانه وی چه یګانه وی
یا مې لېمه دی یا مې ځیګر دی

یار دخوشحا ل دی خو شحال د یار دی
که وفا دار دی که جفا کار د ی
دعا شقا نو چه خه اسرار د ی
در قیبا نو باند ې خه کار د ی
* * *
یار که خه یار و ی له ځوانه زوړ نبه‌دی
تل به دې نیازوړی ونیاز ته جوړ نبه‌دی
بل فکر نشته د سوات په ملك کښې
که‌زوړ که ځوان وی تر وږ ی‌موړ نبه‌دی
* * *
یار مې د شپږ و تر منځ اووم(۱) دی
چه څوك یې نه ستا یې په حسن‌ګرم دی
چه را ښکاره شی په ما ژړا شی
چه مخ یې نه وینم په ما تور تم‌دی
* * *
یو تور بورا دی یو تور جعل(۲) دی
قسمت ددوا ړ و سره بیل بیل دی
بورا په بو ی دګلو نو پا یې
تل وګند ګی ته جعل ازل(۳) دی
* * *
یو لوی تر غرو نو فکر را پیښ د ی
نه پلا ر نه زو یه دچا خوښ دی
زر ګنا هو نه په استغفار بخښی
دا خدای‌هو ښیار دی وایه‌که هیښ‌دی؟

---

(۱) مطلب دادی چه‌په‌اووستور یو کښې شپږنور دی‌او اووم‌زمایاردی چه هغه نمر دی.
(۲) ګونګټ . (۳) مایل او راغب .

ابله هغه دی په و رځ چه څراغ کښېږدی
یا چه بې دردہ په صو رت داغ کښېږدی
یا چه د شګو عمار تو نه کا
یا چه په بدہ ، مځکه کښې باغ کښېږدی
* * *
اتش قبو ل کا ګنی چه قند شی
په هر د یار یې صفت د خوند شی
ادب د زو یه د و رور بایده دی
جو هر د تو رې په صیقل څرګندشی
* * *
احمق که هر څو دنیا دو لت لر ی
دولت به بای کا چه حماقت لر ی
که ډېر نا دار و ی شکر دې کاند ی
که خوی یې ښه وی علم حکمت لر ی
* * *
اسپې اسو نو و ته سا تلې شی
ټټو ې خرو نه سره شړ لې شی
ټټوا ن یا خرو نه باندې ختنه کا
ځینې نا بودې ګلې حاصلې شی
* * *
اسما ن چه هو مره لو یی رفعت لر ی
مځکه چه هو مره سترو ی(۱) وسعت لری
دا به خدای ړا ړه سر ه فنا کا
څه لو ی عظیم دی عظیم ساعت لری
* * *
اسمان رو غ ز ړو نه ، نه د ی پر ېښی
ده دی په هر چا ، چاپونه ا یښې
څو یې د استو ر ی په ستر ګو وینې
وا ړه دا غو نه د ی ګو ښی ګو ښی

---

(۱) لویی ، کبر .

اصیــل بــه شر م ، حیا ، و فــا لر ی
اصیل یــې و ګنهــه هغــه چـــه دا لری
کــه شا ه هــزاده و ی چــه دا یــې نه‌وی
اصیل یــې مه ګنهــه یو ه بــلا لــر ی
* * *

او رو ږانــد ه تــه پــه تا و مفهو م شی
وستر ګــه و رته خرګند معلــوم شی
هغــه چه پر پوځی و ا ورتــه رنګ‌واخلی
هرځو ك خبر دی چه اور یــې نو م شی
* * *

اوس لــه دیو ښــځو کلــه مردم زیــږی
ورځنــــې وا ږه مــارو لــږ م زیــږ ی
دخو ل که نه کــږ ې ور سره ځای لر ی
چه‌ځنې واږه په عقل کم زیږی
* * *

اووه اسما نــه او وه یــې ستــو ری
دو الس بــر جونه د ی چه پکښې‌ښوری
غمجــن دې تــمه د ښــا د ی کــاندی
دشپــې ځښتن دې سحر تــه ګــو ری
* * *

اهل کیمیا دی کیمیا به خــوك مو مــی
اهــل وفــا دی وفا بــه خو ك مو می
نوم د عنقــا شتــه په دا جها ن کښــې
اهــل عنقــا د ی عنقــا به خوك مومی
* * *

باد شا ها ن ښه دی‌چه په ځوانانوزرښندی
ځوانان پرې ښه کا چه ورته سر ښندی

زرسر، دا دواړه توکه ډیــر ګران د ی
یویویــې وښنــدی نه یې یو هرښندی

بار داو ښنا نو پــه خرو نــو لیــښ‌نه‌شی
جام دمستانو په صوفیانو ښیښ نه‌شی
دوینښ له حا له او ده خبــر نـــه د ی
خــو چه لــه خپله خو به نه ویښ‌نه‌شی
• • •
باز پــه دیــد ن دتــا ؤ س وو یــا ړ ی
سر پښــې یــې هر څه سره ونغا ړ ی
په خپل خپل ښکار پسې هرڅوك تلاش کا
مز ری کــه زوړ شی غومبړې (۱) غواړی
• • •
بــاز ونــه وا ړ ه بـــها درا ن د ی
چــه بد شــی نه نیســی بدبازداران‌دی
چه په اسو نــو کښــې خم چــم پیدا شی
اسونـــه ساز کا چــه شهسواران د ی
• • •
بانــه کــه هر څــو دستر گــو زیب لری
چــه و ر کــا ږ ه شی بــلا اسیب لری
زو یــه کــه ښــه دی تور دی دسترگو
زو یــه کــه بد شی ما ران دجیب‌لری
• • •
بخــت دمغلــو پښتنا نـــه نه پر ېږ دی
چه اتفاق و کــا په تورمزړه‌کښې‌پرېږدی
گــنه څه هــو مره پښتانــه نــه د ی
چه یــې پــه یاد کا دمغلــو زړه رپېږدی
• • •
بخت و دو لــت دسر ی له څا یه وی
نــه‌له هنــر ه نـــه لـــه همایــه و ی
هنــر هــا لـــه را شــی هما ی هاله راشی
چــه بانــد ې حکم په چاله خــدا یه وی

(۱) په‌دو یمه اودریمه قلمی نسخو کښې (غونبړی) راغلی دی .

بد خواه دې کوم دی چه دې په بدوو یاړی
نېکخواه دې کوم دی چه دې بهبود غواړی
که هر څو خوی دپر ښتو حاصل کړې
له‌چابه ته ژاړې څوك به له تا ژاړی

* * *

بد مغ نا حقه په زر پسا له شی
ښه مغ چه بیا مومی پسو لحاله شی
که هر څو رنګ لری سرې سپینې پاڼې
شیندی به چری نرګس با له شی

* * *

بدی په لاس وا خلی چه ګنهګار شی
چه ګنهګار شی هغه ددار شی
چه څوك له خپله شا متـه خوارشی
خپل پردی وا ړه ځنې وېزار شی

* * *

بدی له خپلو چه اوا ره نه شی
خپلوی د خپلو په چا ښکاره نه شی
که ښه دی ښه څو هغه سړی دی
چه یې په خپلو کښې ګرېوان پاره نه شی

* * *

بته تل لا مبی او به تل مومی
بد بوی یې ولې له تنه درو می
بد بوی یې څکه درو می له تنه(۱)
هر ه بلا ځی دد ې تر کومی

* * *

بوی دې له نطقه دکبر و آز ځی
لکه دخولې نه چه بوی دپیاز ځی
په املا نخه و در ې فکرو نه نورکړې
عمر دې هسې ګنده نا سا ز ځی

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې داسې دی (له تنه درومی) .

بې غـمه خو ب کا چه رو غ په تن و ی
خوب به پـه څه‌کاچه څوك غمجن وی
موږ دشکر و حـلوا ته نـه ګـو ر ی
وږی دسپو ر ې روټۍ کازمن وی (۱)
* * *

بیهـا ن دا سپـو کلـــه یکسا ن د ی
ځینـــې ټټـوان د ی ځیـــنې اسا ن د ی
ځینــې دبار د ی د زیست رو زګـار دی
ځینـــې دتو رې دبرګستوا ن د ی (۲)
* * *

پـر پړ ده پر ې ستـر ګې دوړ یو و وزی
باندې پراتــه اوسی وږی ســر کوزی

لویــی مړی دلـوی تبـا خ د ی
دو ې دی خـو ږ لی د تباخ خـخو ز ی
* * *

پر ې مې سلا م دی جر ګــې چه پنځېشی
زړه مې هو رې وی هورېچه هنځېشی

خوشحا لــه زوړ شو ې قرار ناست اوسه
پښتـو ن چه زوړ شی دنغر ی‌دځنځېشی
* * *

پرې مې ســلا م د ی هغه چه می خو ری
خدای‌یې دا روکړه‌که په دودیې‌دی‌خوری

اول خلوت بیا بنــه صحبــت بو یــه
می دې په صو ت د چنګك ونی خــو ری
* * *

---

(۱) مشتاق.
(۲) داس زغره دغه کلمه په قلمی نسخوکښې برګستان راغلی ده .

پسرلی چه راشی یا پشکال شی
د ختټ ځینی شیخان خوشحال شی
شکرانې اخلی دبا را ن وعد ې لی
په درو غجنو و عدو نهال شی
* * *
پښتانه وا ړه لکه مارونه دی
مغل دم کړی په خپل کارونه دی
چه په مارونو کښې لوی مار پیداشی
پسې یې غوا ړی که په غارونه دی
* * *
پلار د خپل زو یه په کار ډیر ویا ړی
په هره چار یې بهتری غوا ړی
چه خوی یې بد شی نصیحت نه منی
دده له خو یه په او ښو ژاړی
* * *
پلار مور که هر څو نیکو فرجام وی
په بد فرزند پورې خجل بدنام وی
فرزند که نه وی خدای یې کا مرانلره
دبد فرزند د ې زهر په کام وی
* * *
پنځه دې ګوتې دی که یوه نه وی
دنورو ګوتو چار به دې څه وی
دلاس خوبی ده په پنځه ګوتې
چه سره جوړې وی کار به دې ښه وی
* * *
پند دنیکخواه دی خدای دې یې ښه لری
ورمون (۱) دنیکو نیکان په زړه لری
هو ښیار لازم دی خطا یی و لې کړه
نادان معذور دی چه عقل نه لری

---

(۱) تدبیر ، مصلحت ، نصیحت .

پند د ي سود مند د ی که څوك يې ونغوږي
وخت د فساد د ی له تاچه و ژبې ی
زو ی يې مه بو له حذر ترې بو يه
چه دې له حکمه له رایه و غږ یږ ی

* * *

پو نهه (۱) په اور کښې گونه گونه شي
کاڼي په اور کښې گچ يا چونه شي
عادت به هيچېر ي دنا کس نورنه شي
که اور يې پو رې په درو نه شي

* * *

په باغ په راغ کښې کرل هرڅه شي
په خپل خپل اصل بياواړه و شي
که لويول يې په شو دو پې و ی
مولی موالی ده نور څه به نه شي

* * *

په باغ چه که شی چه ترې وتو نی وی
که لو ن لون مېو ي خو ړو نی وی
که هر څوو خو ری گلو نه بو ی کړی
خو عا قبت به ور ځنې تلو نی وی

* * *

په باغ کښې ډېر ي ونې و لاړ ې و ی
چه ښې يې څیر کړ ې په څو څوغاړې وی
پلنی، نری، گورې، ناگو رې
ځینې په پور ته ښا يسته و لاړ ې وی
په تار د غنی (۲) ذباب (۳) بند کيږ ی
نه په دا لو مه عقا ب بندکيږی
پندو عا شق ته بند د خسې يو د ی
په دا به کله سيلا ب بند کيږی

---

(۱) په‌دریمه قلمی نسخه کښې (پندهه) ليکل شوی دی
(۲) جولا گی. (۳) مچ.

په چا چــه عــد ل يــا ستــم کــيږ ی
هر څا ی‌چــه بيــش و يا څــه‌کم‌کيږی
بې څایه هيــڅ نه دی وا ړ ه په‌څای دی
دا يواز ميبنست دی پــه عــالــم کــيږی
* * *
پــه څا ن مــې لږ ډيــر څا يو نه‌مبنلی‌دی
چونې چونې مــې ښکلــې ښکلې‌کتلې دی
ستا تر ښا يستــه چه نــا ښا غــلی د ی
دبلــخ ښکلــې کشمير ی ښکلــې د ی
* * *
په خپلــه پو هــه که ذو فــنو ن و ی
ويل چه نه منــی پکښــې جنو ن وی
دو لت ته ورســي تينګ يې ونه نيسی
قا بل يې مــه ګڼــه‌چه په رای‌زبون وی
* * *
په دا به پو ه شــی هغــه چه کس و ی
ډير ې رمــې لره يو شرمښــی بس و ی
چه يــو بــخر ی دا و ر پــيدا شــی
په مــخ يــې و ړ ی انبار د خس و ی
* * *
په دا جهــا ن کښې چه څو غمو نــه‌دی
څو څو خــوار ی څــو قسمتونــه د ی
واړه پــه بخــره دعــا شقا نــو شو ل
بــخر ې له څــا يه پــه قلمو نــه د ی
* * *
په دا جها ن کښې چــه خرا بــی د ی
يا نا حقــی بې حــجا بــی (۱) د ی
يوه بــه نــه و ی د هــو ښيار له لاسه
د نــادا نا نــو دشتــا بــی د ی

---

(۱) په‌اوله‌قلمی نسخه کښې دبې‌حجا بی په څای (بې‌حسابی)دی.

په دا خبـره هـر څـوك خبـر دی
تـر او رېد لـو ليـد ل بهـتر دی

تا غوندې کلـه هـو سی دمښکو دی
مښك دې د زلفـو کـه بـرا بـر دی
* * *

په رنګ په خو ی کښې سر ه پر خیٔوی
پـه مر تبـو کښې سـر ه تـېر ی وی

يو سيـنـد تر بل پو رې لکـه لښتـیٔوی
يو غر تر بل پو رې لکـه غونډ ی وی
* * *

په رنـګ متيـا ز ې لکـه او بـه دی

په خو نـد پـه بو ی کښې داو بو نه دی
لکـه چـه مخ وينی څو ك پـه او بـو کښی
هسـې پـه د ې کښـې د مخ لـيد ه دی
* * *

په زړه کښې څړيکه د ښکا ری و لا ړ ه شی
هی هی نا ر ې وهـی بوږه یې(۱) غاړه شی

چه سره و نښلـی د ښکار با زو نــه
زر کـه ددوا ړ و لـه منګو لو ولاړه شی
* * *

په سپين و ښښتـه مې په ز ړه سرور راشی
ږيره چه سپينه شی په مخ کښې نورراشی

غـم د زړو وا لـې په ز ړه ها له بو يه
چه پـه غا ښو نو ،لېموفـتور را شـــی

---

بوږه غاړه چه له ډېرو چيغو يې آواز کينی .

په سرطا ن کښېږ پــه مز ری په وږ ی
مرد بــه خپل ځان ژغوری زماکه نغو ږی
لینده ور غو مــی صحبت هم زیان لر ی
پــه دا منزل د ې پهبهار کــو ږ ی(۱)
* * *
پــه سر یتو ب کښېږ وا ړه یکســا ن دی
کــه مؤ منــا ن دیکه‌کــا فــرا ن د ی
ایما ن د چــا د ی د مؤ منا نو د ی
ایما ن یــې نشتــه چــه کا فرا ن د ی
* * *
په شپــه آرا م شی په و رځ هر‌کام شی
پــه ما دا کلــه په صبح و شا م شــی
په شپــه په و رځ دی د عشق غمو نه
آه وژا ړ ا مــې ســره مــدا م شــی
* * *
په شمار مــې زو یه تر شپېته زیات دی
نیمــګی به مړه و ی نیمګــی حیات دی
چــه را خر ګند شــو ل په کا رو بارکښې
تر دې ژونــد یــو بهتر اموات دی
* * *
پــه ښــا یستــه ؤ چــه مــبتــلا و ی
بـــې فکــره کلـــه خـــلا مـــلا و ی
بې‌ی مینــې مه شــې مین هم مه شې
دادوا ړ ه تـــو کـــــه الا بــلا وی
* * *
پــه عا شقــا نــو خــوځــو خبر ې شی
ور ته لښکرې شی تورېشی زغرېشی
چه عا شقــا ن د ی چـــه صادقا ن د ی
عــشق به یــې کلــه له د لــه الېر ېشی

(۱) کوږل = لاس او پښې خوځول اوزیار ویستل .

په‌کار دعلم عالمان مو نه‌ی
شیخان په کار دشیخی ځان چونهی
دا واړه هیڅ دی زما په پوهه
ګوره څوك ور شی په‌مخ مخړو نه‌ی
* * *
په کار هیڅ نه ده خالی مستی
څو لا په زړه لری د غم هستی
هستی تمامه په مستی کښی وبازه
له ما نه زده کړه می پرستی
* * *
په کاغذ و کښی خوانا یی ولولی
چه کښلی نه وی هغه څوك څه‌لولی
هسی مردان شته په دا دنیا کښی
تختی دو چولی تختی د زړه لولی
* * *
په لار چه د رومم په مخ دلبر راشی
یا به څه بیا مو مم یا به خبرراشی
هسی دښکلیو په دید ن خوښ یم
لکه په خوا رو باندی اختر راشی
* * *
په مخ که هر څو صاحب جمال وی
ننه په زړه کښی افعی افعال وی
که زر تسبیح لولی باور پری‌مه‌کړه
ښځی می واړه د مکر جال وی
* * *
په ننګ خبر نه دی بی ننګه کلی‌دی
وفا یی نشته له عقله پلی دی

که لمونځ او دس کا په پنځه وخته
هم بی صلوة هم مخ ناولی دی

په هر چا کو ته غمو نه خپل دی
څوك دی چه نن مې په غم دبل دی
دور دچادی د عالمګیر دی
لاس به په غوږ و لری چه څوك عاقل دی
* * *
په هره چار چه همت بسته شی
تېره خارو نه هم ګلدسته شی
کم همتی چه یې په لاس وا خیسته
دهغو بخره خواره خسته شی
* * *
په هره ژبه سخن سنجان دی
د ځان په فخر پاك دسبحان دی
په خوله یې ذکر په زړه نور فکر
فساد دد ورد نا شیخان دی
* * *
تا چه پیدا کړه دا او وه ستوری
چه ستا په حکم و بله ښوری
په ښوریده کښې ډېر ډېر کارونه شته
رانده یې نه وینی بینا یې ګوری
* * *
تازی چه زوړ شی په قدر خر شی
مزری چه زوړ شی تر شغال بتر شی
زوړ دې دماغ د ځوانی نه کا
په داویل دې هر څوك خبر شی
* * *
تازی چه نه نیسی کوته چه نیسی
خلك په ښه نظر کوته نه کسی
تورزن په خپله خپل ځان په قدر کا
چه توری غشی په ځان را نیسی

تر باز نه نور نور مر غـو نـه کښ دی
هنر چـه نه لری ځکه چو هښ (۱) دی
خپل کار ځرګند کا په دا دو ه ځـا یه
مردا ن دکـو ښـې ښځـې دکـښ د ی
* * *

تر سر تر پا یــه چـه سړ ی سازوی
فهـم که وکړې درست سره راز (۲)وی
سړ ی هغـه ګـڼه چه خپل ځان پېژ نی
چـه بـې خبر وی یو تشـطـراز و ی
* * *

تل تل چـه غور ځـی داسعد ستـو ری
دهنـر منـدو پـه طلب ښـو ر ی
کـه چـېر ې و رشـی په بـې هنـر و
ځینـې د تللـو در وا زه ګـو ر ی
* * *

تـوانـګر هغـه د ی چه قـنا عـت لر ی
نه چـه با رو نـه یـا بضـا عت لــر ی
چه خو ی خصلت یـې دسړ ی نه و ی
یو دد یـې و ګڼـه که شجا عت لـر ی
* * *

تو به ها له ښده ده په ګناه چه لاس رسی
چەلاس په هر چېر ته پەکوزوپاس‌رسی
چه لاس و نه رسی تو به څـه سود لری
خالـی خبر ې په خو له د نا س رسی

---

(۱) پەچاپی نسخو کښې (څوهښ) دی .

(۲)په دو همه قلمی‌نسخه‌کښې (ددرست‌سره راز) په ځای (سره‌یوراز) راغلی دی.

ته او م سبو يې تر خرخ و تلی
دا ور تر تا وه نه يې ختلې

که چېرې و وځې دا و ر له تا وه
نوم به داوم وی له تا نه تللی

* * *

ښتو به هېچېرې دا س په يو ن نه‌شی
په توره هېڅوك لكه پښتون نه‌شی

اصل په هر څه کښی خپل ځان څرګندکا
خوند د متهرو به ګندم ګون نه شی (۱)

* * *

جهان د چا دی چه څوك تور زن وی
دا دو د هش کا په نو م مين وی

ناستی د ې د ی دعلم تر سيوری کا
چه څوك د علم د و رع ځښتن وی

* * *

جهان که وا ړه سره او به شی
دا دو ه ببړ ی به په ډو به نه شی

يوه ببړ يه چه څوك رښتينې وی
بله چه و ړی په چا ما ړه شی

* * *

جهان که وا ړه سر ه سور او ر شی
ګوما ن و مه کړ ه چه عارف نور شی

که سمندر غوند ې په اور کښې کارنه‌کا
عارف يې مه ګڼه مخ دې‌يې تور شی

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې دا مسره داسې راغلې ده : په تربيت به شوی اکسون نه شی .

جو نه چه نــــه وی وا ده لا حــو ره و ی
او لا د چــه را و ړی آد م دستوره وی
چه سر یــې سپین شی مخ یې بې‌نوره‌شی
یو ه پــیر ی در تــه حضــو ره و ی
* * *
چارې دد هــر پــه هغــه د ستور د ی
لکــه په تورو پــه سپین مسطــور د ی
لاهم هغــه د ی چــه پکښې و ر کــې
هو مره لښکرې دسلــم توره (۱)دی
* * *
چــه اصل بد لر ی ځــا یــی بد خو وی
یا رنــګ ښه نه لری ځا یی بد رو وی
دا دوا ړ ه تو کــه بــه هېڅــوك ښه نه‌کا
کــه کرا مت لر ی که یــې جا دو وی
* * *
چه بخــت یــې تور شی عقــل یې‌نورشی
مــخ یــې په بدو په شرو شــور شی
دبد خوا ها نو ویــل پر ې ښــه لــګی
دښــکخوا ها نو ویل پر ې او ر شـــــی
* * *
چه بد اند یــښ وی چه بدا مو ز و ی
چه بدګــویی الری واړه بد رو ز وی
که ته لو یــی غواړ ې لو یی په چــامه‌کړه
ښکا ن پــه دوا ړ ه کو نه فــیرو ز و ی
* * *
چه بد بنیا دو ی چــه بــد نــــها دو ی
په هره چار کښې یــې ما یه فســـاد وی
دښکې چار ې الــف یــې نــه زد ه
پــه بد ه چار کښې کا مل استـــاد و ی

(۱) دایران دبادشاه فریدون ددوو زامنو نامې دی.

چه بد بنیا د وی چه بد نها د وی
دمور په نس‌کښې په بلا یا دوی
هر چه ز و ولی د ی د فساد د پاره
خو چه ژوندی وی هم د فساد و ی
* * *
چه پا ځم درو مم په لار د لبر را شی
یا ښه چه بیا مو مم یا ښه‌خبرراشی
هو مره د ښکلیو په دید ن خو ښ یم
لکه په خوارو باندې اختر را شی
* * *
چه پر ې‌مین وی که بدو ګو ری
پر ې دې وو ځی د ستر ګو تو ری
ورته د عا کړ ه که د ی ښېر ې کا
ور ته خندا کړ ه که دی دې زو ر ی
* * *
چه پس له مر ګه سړ ی ښه یاد شی
که هسې خوی کا په دا دې ښاد شی
چه خو ی یې نه و ی دنېکنا می
ژوندو ن یې هېڅ وی ژوندون یې‌بادشی
* * *
چه پکښې بانګک دمسجد اما م نه وی
په هغه کلی‌کښې میشتی مقام‌نه وی
په هغه کلی کښې قتل روا و ی
چه هغه کلی به داسلا م نه وی
* * *
چه پو زه نه لر ی ، غوږو نه نه لر ی
شرم اندو ه به له چا نه څه لر ی

رنګک یې مه و ینې ستر یې ښه دی
که رنګک بې غوږو بې پوزې ښه لری

چه تاخوك وويني مهر به خه ويني
مهر به خه ويني چه تا خوك وويني
عا شق خه نه ويني چه تا ونه ويني
چه تا و نه ويني عا شق خه نه و يني
* * *
چه ترس د خداى لرى مرگ يې په‌يادوى
زړه به يې کله په ظلم ښا د و ى
تل به يې مټ وى په ښو ښو چا رو
مخ به يې هرکله په عدل و داد وى
* * *
چه تنگه خو له لرى او ږ ده با نه‌لرى
تو ري و رو ځى ملا ل کا ته لرى
نور خه يې مه گنه زما په پو هه
تر سر تر پا يه به صورت ښه لرى
* * *
چه جنگيا لى دى دو لت هغه مو مى
چه ننگيا لى د ى عز ت هغه مومى
دا دوا ړه تو کې سره تړ لى د ى
خو ك چه محنت کا راحت هغه مومى
* * *
چه ځا ن غوا ص کا گو هر هغه مو مى
چه بې ننگى و اخلى د لبر هغه مومى
دا کار مې خو ځله په ځان راغلى دى
تر سر چه تېر شى ظفر هغه مومى
* * *
چه خه په کار دى ختك تر ى د ى
تر مېرى خپلو برگويټ برى دى
ډېر ې پښتنې لر ى حيلې مکرو نه
پښتون يې مه بوله بولاق هندکى دى

چه څوك دنيا لري په ځان يې‌نه خوري
دګور غه تو رې خا و رې د يو خوری
چه ما ل يې پاتې شي و بل حريف ته
چه يې له خپلو يا رانو ښه خو ری
* * *
چه څوكسو ګندكا ،كار يې څر ګندوی
سر ددروغو زر زر سوګند وی
سوګند به نه خو ری چه راست ګويان‌وی
ددرو غجنو سوګند كمند وی
* * *
چه څوك يې سمه ګټې هغه كړ ه‌شي
چه يې كړ ه ګټې سمه هغه شي
دخل د چا دی د خدا ی په كړ ه كښې
په حال خبر شه چه څه دې‌زده شي
* * *
چه څو ك يې كاند ی كله يا ر ی دی
ياخود كامي دی يا عيار ی دی
چه ښې مې خير كړ ې تر دا بهترې
يا و پېزا ر ی د ی يا اغيا ر ی د ی
* * *
چه حر ص ناك و ی يا تر سند ه و ی
يار ی له دوا ړ و سر ه ګند ه وی
دابه د ې پر پېړ دی په تنګسه بلاته
بتر تر دا نه شكم بند ه و ی
* * *
چه خپل حر م سا تی خد م حشم‌ساتی
بو يه چه وا ړ ه د ې محتر م سا تی

ادب د ې ډېركا د زو يو لو ړو
چه بې اد ب شي و ځان‌ته غم‌ساتی

چه خپل سر خو خ کا بها یې وا خلی
چه یې مدار وی مولا یې وا خلی
که یې صا حب و ته بلا پیدا شی
نمک حلا ل دی که بلا یې وا خلی

* * *

چه خو ی یې نه وی صورت ز ښالری
لکه ښه لو ښی خا لی غو غا لری
ښه مخ په مثل لو ښی د ز رو د ی
ښه خو ی په لو ښی کښې خوږه حلوالری

* * *

چه دانسته درو می چه اهسته د رو می
فتح هغه مو می نصرت هغه مومی
چه کا هلی کا یا ډېر تلوار کا
نا مرد هغه نو می نا کس هغه نو می

* * *

چه د بدا نو سر ه مقیم شی
که بیم یې نه وی هغه په بیم شی
ضر ب المثل د ی ددانا یا نو
دښمن چه دوست کړې دوست دې غلیم شی

* * *

چه د بزر گا نو خفت (۱) اسان گنی
هغه خفت دې ا فت د ځا ن گنی
لږې بلا به و ر باندې ور نه شی
جو ړ د ې زرگو نو بلاته ځان گنی

* * *

چه دتا ز ی سره د ټټو رگ و ی
کله تاز ی غوند ې په لار یې تګ وی
رنګ ته یې مه گوره عمل یې گوره
که سور که سپین وی که تور که برګ وی

---

(۱) خفت = سپکاوی .

چه در پسې زغلی هغه دولت وی
چه ور پسې زغلې هغه زحمت وی
قابل هغه دی چه دچا منت نه وړی
په نا قابل باندې ویل منت وی
* * *
چه درست په منبك و په عنبرډوب وی
چه په ګندګی ککړ شی خوب وی
قرآن چه لولی هر ګوره بد کا
چه بیا په فسق و فساد معیوب وی
* * *
چه در و کاږی وړه دې پرېږدی
خالی به وځی که زړه یې ډېرېږدی
یا به راوکاږی ګوهر له یمه
یا به دا خپله کله پرې کښېږدی
* * *
چه دکهتر و جفا په ځان وړی
کهتر به کله د مهتر فرمان وړی
سزاد و خته د کهتر بویه
که نه مهتر به په زړه ارمان وړی
* * *
چه دین دنیا ګټی دا نافرزند وی
غوږ به یې هرکله دپلارپه پند وی
اوبه ، به نه ځښښی د پلار بې حکمه
نه به یې پورې شوندې په قند وی
* * *
چه ذات یې بد وی اصل ناپاك لری
ګنده به فعل ګنده به ژواك لری
زاغ و زغن ګوره بلبل تو تی ګوره
خپل خپل پرواز کا خپل خپل خوراك لری

چه ډېر یارا ن یې تر نظر تېر و ی
اخلا ص تريمه غواړ ه لبا س يې ډېروی
په مخ که هر څو مهر خندا کا
چه در ته شا کا وا ړه يې هېر و ی
* * *
چه ډېر ي ونې لنبتی کم آ ب لر ی
ځنبتن دو نو څو پېچ و تا ب لری
نصیب زه هسې په پېچ و تا ب کړم
ما به تر کو مه په داعذا ب لر ی
* * *
چه راستی نه لر ی نه یې اخلاص وی
زړه دې له هسې یاره زر خلاص وی
چه څه دی ز ړه د ی په د رست وجود کښې
ور کړ ی بو یه د چا چه خا ص وی
* * *
چه ربا عی د خوشحا ل خا ن د ی
دلا جور د یو غشیو په شا ن د ی
تیر ګر که هر څو غشی ښه روغ کا
پر واز یې بو یه که پر يې وران د ی
* * *
چه رنګ او بو ی لری ګل، ګل هالهشی
پر ې د بلبلو غلغل ها له شی
چه نه یې رنګ وی نه یې ښه بوی‌وی
ورځنې پا تې بلبل ها له شی
* * *
چه زر یې ونیسی زر یې بیا پر ېږ دی
خو یو نا مرد به وی زړه به‌يې ربړ دی
یاد ې یې زلفې په لاس کښې‌نه نیسی
یاد ې یې ونیسی‌سردې پرې‌کښېږ دی

چه زړه له تا نه د چا ښه کېږي
ښه کړه دعا گټه دعا قبلېږي
آزار د هېچا دا خستو نه دی
ښېري د خوږو زړو نولګېږي

* * *

چه سپینې پېږ ، سره یې غنم وی
حرم حشم لری آرام یې هم وی
چه شکر نه کا په خپله بخره
دهغه بخره دمار لړم وی

* * *

چه ستا خوبی غواړی دغه دې یار دی
چه ستا خواری غواړی هغه اغیار دی
چه ستا په غم خوښ شی صرفه پرې مه کړه
بیا به ار مان کړې که دې خپل وار دی

* * *

چه سره لوی و و په یوه غولی
وګورته لا ړل هغه همزولی
زه په دا دواړو غوږو نو اورم
نارې د دو یو چه ما هم بولی

* * *

چه سر یې خوږ نه شی سری چه داغ کښېږدی
هر څوك پوهېږی څان ته بلا بلېږدی
له چا چه جنګ کړې رو غه په زړه لره
هوښیار په جنګ کښې دروغې څای پرېږدی

* * *

چه شرم نه لری عیب ته نه ګوری
لولی بې شرمې دی څکه خپل څان پلوری

هغه چه پاکې دی شرم حیا لری
زړه یې فساد ته په لکونونه ښوری

چه ښکار په کور ګښېږي و رته تيار وي
دچا به ولې د صحرا ښکار وي
په باغ و راغ کښېږي د بهار ګل څه کا
چه يې په کورکښېږي تازه بهار وي
* * *
چه ښه صورت لري شرم عفت لري
واړه د دين ددنيا دولت لري
چه ښا يسته وي عفت يې نه وي
څه قبا حت لري څه قبا حت لري
* * *
چه ښه لذت غواړي نېش اوافت غواړي
نيش او افت غواړي چه ښه لذت غواړي
چه محبت غواړي غم د فرقت غواړي
غم د فرقت غواړي چه محبت غواړي
* * *
چه عاشقي کا خوشحال دې پوښتي
له شرم اوننګ دې په کرو هوتنبتي
ترمال دې تېر شي تر سر دې تېر شي
چه عاشقان دی تر لوی غررغنبتي
* * *
چه عالمان يې په تور و سپين وينې
چه درو پښان يې په عليين وينې
دعارفانو علم څه نور څه دي
تر عرشه فرشه په خپل يقين وينې
* * *
چه عقل يې کم وي کله ادم وي
کله ادم وي چه عقل يې کم وي
چه عقل يې کم وي تل باندې غم وي
تل باندې غم وي چه عقل يې کم وي

چه غر دسرو زرو د سرې خپل شي
مهر ناستی (۱) ته یې کله کتل شي
چه باد شاهانو سره نا ستی په تخت کا
دانور ځایونه و رته خجل شي
* * *
چه قبول زړه ته دچا ، چار بده شي
چار یې نور بده تل تر ابده شي
روپۍ چه کلپه شي یوه صراف ته
هغه روپۍ په هر چا رده شي
* * *
چه کاهلان دي چه احمقان دي
دولت به بایلي که باد شاهان دي
دولت دديني ددنيا د چادی
چه هوښيار ان دي په کارچسپان دي
* * *
چه ښنت او به غوا ړی او به بیانه مومي
له هغه ښنته به سبز ه څوك مومي
دهرې چارې یو وخت یو وار دی
گل په تموز ښنې که تل اوبه غواړی
* * *
چه ښښنی ژاړی فریاد ښېرې لري
دزړه د آه توري تېرې لري
ښېر به په هر چا په وار وار را شي
اندوه دې نه کا اسمان پېرې لري
* * *
چه مو ریې ښه وی بابا یې ښه وی
بد به یې زویه لو ښه په څه وی
چه اصل بد لري بد به ولد لري
کچر به هېچېرې بې فتنې نه وی

---

(۱) په دریمه قلمي نسخه ښي دناستی په ځای (ماسی) راغلی دی.

چه نا دانـا ن د ی یا فـاسقـا ن د ی
یو دم کار و کـا بیا زر زر پښیمان دی
چه یـې په کار کښې پښېما نی نشته
یا عاقـلا ن دی یـا صـا لحـا ن د ی
* * *
چه نه ادب لر ی نه‌عقـل را ی لـر ی
دو پا ی لید ل شـی خو ی دچارپای‌لری
چه بـې اد ب و ی آ د م یـې مه گڼـه
خـه شو کـه شکل آ د م نما ی لری
* * *
چه نه تد بیر لر ی‌نه ځوانمردی لـر ی
تل به پـه کار کښې دمخ زر دی لر ی
پوهېږ ې ته اور را وړه هنـرچه توره شی
هغـه سړ ی نه و ی چه دل سر دی‌لری
* * *
چه نه طا لع لر ی نه مصلحـت لـر ی
دو لت به با یلی کـه ډېر دو لت لر ی
چه شکر نه لری‌کلـه نعمت لـر ی
چـه صبر نه لری کله حـکمت لـر ی
* * *
چه نه طا لـع لری نه مصلحـت لـر ی
دولت کـه غواړ ی‌چه بد خصلـت لری
دولت هغـه دی چـه د ر پسـې درو مـې
چـه ور پسې زغلـې بـلا افت لـر ی
* * *
چه نه لنـگېږ ی نه یـې ځوانی و ی
دهغې ښځې روزگار فـا نـی و ی

ښځـه محبو بـه ځوانه دمینـی بو یه
چه زیسنت روزگارکا په ښادما نی‌وی

چه نه يې دين وى نه يې دولت وى
نه يې په علم بنه خوى خصلت وى
سړى يې مه بوله يو ګاو و خر دى
د ګاو و خر به څه برکت وى
* * *
چه نه يې ننګ وى نه يې فرهنګ وى
نه يې بنه اصل نه يې بنه رنګ وى
زر دې په تورو خاورو کښې پټ شى
ژوندون يې مه وه چه ځاى پرې تنګ وى
* * *
چه ورځ دې بنه وى دولت دې يار وى
واړه و ګړى دې خدمتګار وى
چه ورځ دې بده شى دولت دې پېروکا
خپل زوى په ورونه له تا و بزار وى
* * *
چه ور کول کاچه دنبر دوى
اسراف که نه لرى هاله درست مرد وى
هغه درويش نه دى چه دنيا نه ساتى
درويش هغه دى چه ترې دل سردوى
* * *
چه هره چار يې په روايت وى
دهغه بر خه دولايت وى
بيهوده نه اورى بيهوده نه وايى
غوږ يې دنيکو په هدايت وى
* * *
چه يې په کور کښې لايق فرزندوشى
کرم له خدا يه په سړى خرګندوشى
قابل چه نه وى په هغه کور کښې
دولت يې هيڅ دى که چنددرچندوشى

چه یې شکلې ، دمغل مز ې د ی
ددو ی په غا ړه ډېر ې بز ې (۱) د ی

په ښکار دچا دی دپښتنو د ی
نور څه یې مه ګڼه لکه خزې(۲) دی

* * *

چه یې د رو غ نه دی چېر ې ویلی
چاته یې نه و ی په بد کتلی

هغه به هېچېر ې خوا ری بیا نه‌مومی
عزت دولت به و رپسې ځغلی

* * *

چه یې راستی نه وی بل یې اخلاص‌نه‌وی
هغه به هېچېر ې‌له غمه خلاص‌نه‌وی

دولت ددین‌دی که ددنیا د ی
بیا به یې نه مومی چه‌خاص‌الخاص نه‌وی

* * *

جیندی (۳) جیحون‌نه دی غوټه ی به غر نه‌شی
شمع قمر نه ده سها به لمر نه شی

که او ښکی (٤) په رنګ دما ر د ه
بیا اوښکی ده دا به اژ در نه شی

---

(۱) بزه = ګناه .

(۲) خزه دښکاری دځو ځای .

(۳) په دریمه قلمی نسخه کښې دجیندی په ځای چینګی ده ، چه‌دوړې چینې معنی ورکوی .

(٤) اوښکی = یو قسم غټ چینجی دی چه دمار په شان ښکاری (ظفر اللغات ) .

ځای او مسکن دې دکار ګه ګلشن نه شی
کم ذا ت سړ ی دې دجاه څښتن نه شی

حسن هغه د ی چه اصل ذا ت لـر ی
دسپا ند ې ګل به ګل دسمـن نه شی
* * *

ځوانی ډ ك جام ده په پیر ی اوړ ی
بقا یـې نشتـه پـه وار وار وا وړ ی

پیر ی یواز ې پـه هیڅا نـه را ځـی
څو څـو عیبـو نـه و رسره را و ړ ی
* * *

ځینـې په عقـل په هنـر دو لـتمومی
څوك یـې په جهل په حما قـت مو می

یـو پـه دار و د طبیب رغیـږ ی
بـل بـې طبیبـه شفـا صحت مـو می
* * *

ځینې په علم پـه دنیا مستـی لـری
ځینې په زهد په تقـو ی مستـی لری

ځینې په تـو ره پـه غـزا مستـی لری
خوشحال په کوم توکی دا مستی لری
* * *

ځینـې خبـر ې پـه تکلـف کیږ ی
ځینـې خبر ې پـه تا سف کیږ ی

ځینې خبـر ې پـه بلـه ژ بـه
لکـه یعقو ب ته قال دیوسف کیږ ی

ځيني خپل جيش لښکر حشم کسی(۱)
ځيني خپل لال ګهر نعم کسی
ځيني خپل علم هنر قلم کسی
ځيني ښکلي هغه صنم کسي
* * *
ځيني که وينځی وی لکه مېر منې وی
ځيني مېر منې دو ينځو کنی وی
عقل هنر بويه په اد مزاد کښې
مېوه چه ښه لری قدر دو نې وی
* * *
څښتن دخو نې چه بې تدبير وی
وينځې مريو نه يې وتېښت ته ځيروی
يا يې ډېر مست کا هوا يې نو رهشی
يا يې ډېر خوار کالکه اسيروی
* * *
څښتن دخو نې د خو ړو خوند غواړی
وينځې مريو نه دخوړو شخوند غواړی
نادان په پند د چا نظر نه کا
ږهو ښيار په هره چاره کښې پندغواړی
* * *
څو به بريتونه دځوانی، ځوانان پوسی(۱)
خو بی يې داده که خبر دار اوسی
مرګ شته پيری شته دا واړه را تلو نی دی
سړی يا مرګ يوسی يايې پيری يوسی
* * *

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې دا مصرع داسې راغلې ده : ځيني خپل عيش کا خپل حشم کسې .
(۱) پو سل = تا وول او غوړول .

څو څو قرنونه به ور باندې تېر شي
شېرين صورت به يې په بلبل څېرشي
لکه چه هېر ې دې پخوا پېر ې
خوشحال به هسې له د له هېرشي
* * *
څو دا جهان د ې دا هسې تل شي
خپل د ې پر دې شي پردې دې خپل شي
دبل وې ستا شي په يوه دم کښې
هغه چه ستا و ې هغه دبل شي
* * *
څو دې د تورو زلفو خمونه د ې
هومره په ما باندې پراته غمونه دي
دخپلو تورو سترگو غمزې وپوښته
چه يې په ما باندې داستمونه د ې
* * *
څو غم غيرت کړ ې چه غليم مې نه مرې
قضا چه نه و ې سړ ې په څه مر ې
نه به ته پاتې شې نه به دې پاتې شي
هيڅ بيړه مه کړه هر څوك به ومرې
* * *
څو ك په چا گرم وې په چا ناگرم وې
ځيني بد فعل په هر چا گرم وې
ته خپل خو ې ښه کړه په چا گر مه شه
خود به شر مېږ ې چه تر تا گرم وې
* * *
څو ك چه په خو ې کښې پاکيزه پاك وې
سخ يې په کور دې پا کيزه ژواك وې
سلوك چه بد لر ې زار يې دځان دې
که هر څو ښه وې هغه هلاك وې

څوك چــه خبر ې ستا د ښا يست وايي
ښه خوی‌خصلت به دې راته‌په‌څه ستايي

زه درتــه ژا ړ م تــه را تــه خاندې
دا هســې کبــر په هــېڅــا نه ښا يي

* * *

څو ك چــه ختلــی پــه ملکو ت و ی
دهغــه کلــه پــه کار نــا سو ت و ی

فرقا ن نا طــق د ی پــه ا مــر نهــې
چــه نهی نه کــا ځا ی يــې لاهوت وی

* * *

څوك چه ډو ډ ی ددهقــا نی خو ری
خوا ړه د حو رو دمهما نــی خو ر ی

چه يــې په ظلــم خو ری وا ړ ه يــې‌زهرشه
که شو لا نو نه (۱) دسلطانی خــوری

* * *

څو ك چه قمر ياد کا رو ی د ې را يادشی
څو ك چه عنبر يادکاموی‌دې‌رايادشی

څوك چه مقر ياد کا کوی دې راياد شی
څوك چه سقر ياد کا خو ی دې‌رايادشی

* * *

څــو ك د هــوا و هــو س نــتلــی د ی
څوك مې په بغض په حسد تپلی(۲) دی

پــلار دخپل ځان دی زو ی دخپل ځان‌دی
په خپــل خپل جو ړ هر څو ك‌نيولی‌دی

---

(۱) شولان = نعمتونه‌اوښه خورا کونه .
(۲) په دريمه قلمی نسخه کښې (تللی) راغلی دی .

ثو يــې غير ت و ی ثو يــې همت وی
دمرد به هــو مره قــدر قيمـــت و ی
مرغــه چــه نه لری تندر ست دو ه ثانګه
پر شی يې کلــه پـــه رفعـــت و ې
* * *
ثو يــې همت و ی هــو مر ه قوت لری
هــر مرو ت لـــر ی هر فتو ت لری
خـــليل اسا دی لکــه مـــو ســی د ی
ابدال پــه اور په اوبه نصرت لـــری
* * *
خار د ې پـــه بخر ه د خار کشا نوشی
ګــل دې په بخــر ه دګلز خا نو شـــی
قنــد د ې پـــه بخر ه د شنــوتوتيانوشی
سوز د ې پــه بخر ه دپتنــګا نو شـــی
* * *
خانان هغه دی چه په خپل نام دی
نه پــه دنيا دی نه پهخپــل کــام دی
چه په کو م تو کــی دنا م بنـــېګړه و ی
په هغــه فکر کښــې په صبح وشام‌دی
* * *
خان دو ګــړی چه شمشير زن نه‌وی
دده بنـــه ور کړه دده بنه نغن نه وی
لکــه نا مرد مــېړ ه چــه واده و کـــا
خوارزار روز ګار کا حال يــېدزن‌نه‌وی
* * *
خبر لا نه يــم چــه دا به کــله شـــی
چه مــې به کسی ســر ه و بلـــه شی

ته آئينه ګورې نه مې سينه ګورې
چـــه دې د هجــر پــه لمبــه سو له‌شی

خبر ي گراني دی اسا ني چېـري د ی
دچـا مشکلـی دچـا گـو هـر ي د ی
په دا دنيـــا کښې چه څـه بهتـر گڼی
ښـې ښې خبر ي تر ي لا بهتر ي د ی
* * *
خپـل بـد خو يو نـه بد خو ی هنرگڼی
په ځان که خاو رېوی خاو رې‌هم‌زرگڼی
په ځان چه څه وی بل هم هغـه گڼـــی
يو چـه کا فر وی بل هم کـا فـرگڼـی
* * *
خپل حکم مه کړه چه کم يا ستر و ی
دافـکر مه کړ ه چـه پس يـا ز ر وی
دکښيد گرې په لاس کښې ستن ښــه
دخط و هو نی پـه لاس کښــې درو ی
* * *
خدای چـه ښه کړ ی په دا جها ن د ی
که پرې پـو هېږي انسان ، اسان(۱)دی
چه سره يو شـی دا دوا ړ ه تـــو کـه
مشکـل کا رونه ور تــه اسـا ن د ی
* * *
خسيس چـه مال لری پرې ښاد به نه شی
ښـده بنـده دی آزاد به نـه شـــی
چـه همت نـا ك د ی هغـــه آزاد د ی
آزاد آزاد دی عبـــاد به نه شــــی
* * *
خصلـت به دا لری چـه منا فق و ی
دهر مـذ هـب سره به مـوا فـق و ی
يو به يـې ز ړه و ی يو ه به يـې ژ بـه
يو بـه مذهب لری چه څوك صادق‌وی

(۱) اسو نه .

خصلت یې دا وی چه لیئیمان وی
نن چه څه ور کا ګاندہ پښیمان وی
که هر څو ډیر ور کا خپل ورکړه کم ګڼي
دا شان یې دود وی چه کریمان وی
* * *
خلك چه بد شی باد شاه یې بد شی
په هره‌چار کښې حیران بخر د شی
خوبی په دو ر دعا لمګیر نشته
دچا به ولې له چا حسد شی
* * *
خلك چه هو مره یا ری کا ندی
ځا ن کا په خپله تر غمو لاندی
مرګ یې له ډیر و غمو نو خلاص‌کا
منت دمرګ دی په هر چا باندی
* * *
خواری یې نشته چه څو ك هو ښیاروی
هوښیارچه نه وی په خواری خوار وی
نراد (۱) چه ښه وی د نرد ګټ نه کا
بد باز (۲) په بده بازی نا تار وی
* * *
خوا ږه دمینې نه راپیښیږ ی
وا ړه په مینه سره غښیږ ی
مینه په مثل نا فه د مښکو ده
نافه د مینګو چیر ته پټیږ ی

(۱) چه دنر دلو به کوی .
(۲) چه په لوبه نه پوهیږی .

خوږ خو ږ ددیګ‌دی سرود، دو ږ ی
غـږ د او بو دی ژو ندو ن د تـږ ی
چه یـې‌کش کش شی پر تو ګ وکاږی
هغـه اواز د ی چـــه زړو نـــه کوږ ی
* * *
خوږ ه مـې ی‌ کـه ښه مز ه لـــر ی
ترې مـې تو به ده که دا بزه لـری(۱)

همای مر غـه مـې څکه هېو نه خو ر ی
اسمان له غو ښو سـر ه خزه (۲) لری
* * *
خوشحال که تور دی دګناه په توری
خلك حـیران شی چه ورتـه ګوری

خپل دین محکم لری خدای‌دیر کرم لری
مخ به یې روڼ کا دسبا تر ستوری
* * *
خوشحال کـه هر څو په رنـځ کښې ژاړی
نامـرد یـې وګڼه که په مرد نه وياړی

ژړا یـــې وا ړه پـــه دا سبـب و ه
دخـدا یـه خـیر د خپل ایما نغواړی
* * *
خوشحا لـه پـا څـه رو غې دې پښې‌دی
مکـې تـه درومـه څـه خـرخښې د ی

زو یـــه کـه و روڼـه که ښه یاران دی
وا ړه د ې و لیـد ل دخپلې ښې د ی

---

(۱) ګناه ــ ظلم .
(۲) رسوایی ، بد نامی .

خوشحا له زو ړ شوې سړ ی چه زوړ شی
دمهو شا نو لـه مینـې مو ړ شـی
تـه خو ز ړ پـېړ ې لا میـن کـېږ ی
زړه بـه دې کله تر ې موړیا سوړشی
* * *

خو نه چه پا کـه و ی پرې بر کت او ری
ور باند ې هر کـله عز ت دولت اوری
پاکی چـه نه وی پـه هغـه خونه کـښې
ور بـاند ې وا ړه بـلا آفت او ری
* * *

خوی چـه دبدو دچـا عـاد ت شـی
په پنـد پـه ز جر لا ز یاد ت شـی
طبیب یـې خو ك د ی ملك المو ت د ی
چـه مشرف یـې پـه شها دت شـی
* * *

خیال دهغـې د ې چـه شو خ وشنـګه‌وی
شو نډ ې یې شهد په مخ ګلر نګه و ی
چه دایـې هـېڅ نه و ی ناز به په څه کا
کـه ناز کـا نا ز به یې بتر تـرجنګه‌وی
* * *

داتو رې ږ یر ې چـه ایـما ندار ې د ی
سپینـې ناپاکـې ږیرې ترې‌خارې دی
صدق و فـا بو یـه چـه دا یـې نه وی
ږیر ې د ځوانو د ز ړ و مـرداړې د ی
* * *

داجام چه چاچینې هسې لا چینې شـی
مستا ن یـې خو ب کاکله بهوینې شـی

حال یـې و هـېڅ‌چا و ته معلو م نـه شو
آه د ې لـه دلـه هـر دم وکینې شـی

داچه خانان دی یا امرگان دی
په هند کښي گرځي په هرمکان دی
غوښي هم و نه دمظلو ما نو خوری
زما تر فهم وا ړه ددان دی
* * *
دا چه و تا ته شیخان پیران دی
بد خواه دخلکو بد خواه د ځان دی
علم عمل بو یه مرشد دلا ري
چه دا یې نه وی وا ړه سگان دی
* * *
دا دي بار خو دی خو له نیو لی
که لا له گل دی پر خپ و هلی
دا دي سر ي شو نه ي که سپین غا ښو نه
که لا ل و در دی سر ه پیلی
* * *
دا لمر په ړ رڼي د شپي دا ستو ری
چه نا کرار دی و بله ښو ری
د ډېر و ستر گي پري لگېدلي دی
و لا ړل لا ډېر به یې په ستر گو گوری
* * *
دانا یې مه گڼه چه صبر نه لری
چه صبر نه لری حکمت به څه لری
سړ ی د صبر په کار کښي واز میه
چه صبر نا ك و ی هر څه به ښه لری
* * *
داووی (۱) مي خوښ دی چه چا ویلی دی
ډېر مي په زړه باندي ښه لگېدلی دی
بد خواه دي خو ښ کا په ښو خبر و
نیکخوا ه په بد ویل خپل ژړو لی دی

(۱) ویینا ، قول .

دا یو خو تو کــه د و قــو ف دا ر دی
باز دمیــر ښکــار دی زر دتــجار د ی
کتـــا ب د چــا دی ددانــشمنـــد د ی
ښــځه دمر دد ه مــښك د عطــار دی
* * *

دبا د شــا ها نو چــه امر ګــا ن د ی
دیــوه بحــر ولــې شــا ن شــا ن د ی
والــه چــه لو یــه و ی کــه کم لښتی وی
او دس پا کی لر ه وا ړ ه یکسا ندی
* * *

دباد شاها نو چــه ښــه خا نــا ن دی
کار کــشا یــې کــا مقــر بـــا ن د ی
که یــې اشنا شي ځنې حذر بــو یــه
اور دی او بــه دی درد دی در مــان دی
* * *

دباد شا هــی په تخــت چه نا ست وی
دا کار یی هیڅ د ی سهر چه نماست‌وی
دو لت، دو لت د سهــار خــبزی د ی
مر دا ن دهسې دو لت په خواست وی
* * *

دباغ ښښتن نه یو سیب پیښکش راو ړی
دده لــه باغه بیا یې په اش(۱) راوړی
هغــه به خو ك وی غــا فــل نا اهلـــه
د ز ړه فکرو نه چــه مشــوشــ راو ړ ی
* * *

دبا غ ګــلو نه چـــه نندا ر ه شـــی
خوخو کا رو نه پکښې ښکار ه شـــی
چا ته پــه خوا رو سترګــو هیڅ مه‌ګو ره
ډېــر ناګــڼلی دی‌چه‌په‌شماره شـــی

(۱) آش = تمه خ

دبخت په مخ کښې زر و دا نۍ د ی
دبخت په خټ کښې زر و یرانۍ د ی
بخت دی د شاه د ګدا هیڅ نشته
په بخت خوار ی هم کا مرا نۍ دی
* * *
دبڼو تیر د ې په خو تېر ه د ی
واړه لك شو ی ز ما په ز ړ ه دی
دا دنکر یز و نګار پر ې نه د ی
دخوار په وینو یې ورغوی سره د ی
* * *
دبیم په ځا ی کښې سړ ی ملا وی
چه یې امیدوی هور ته خوشحال و ی
هغه په خړ و او بو نظر نه کا
چه تل یې بخر ه آب ز لال وی
* * *
دپند پر وا لر ی خا و رې خو ړو نی
ور باند ې بد لګی نصیحت کړو نی
بد دې د هېچا تر فهم ښه نه شی
نه وی د پلا ر د خبر و و ړ و نی
* * *
دتن (۲) مې تیر سو شپېته رګو نه‌دی
ستا نه غمو نه پکښې زرګو نه‌دی
جدا له تا نه چه یو نفس درو مې
خو نفسو نه هو مر ه مرګو نه د ی
* * *
دتن خو لې د ې بو ی د ګلاب لر ی
زلفې د ې طعن په مشکنا ب لر ی
عتاب نور مه کړ ه د خدا ی د پاره
خو شحا ل د ې کله د عتا ب‌تاب‌لری

---

(۲) په دو همه قلمی نسخه کښی (ننه ) راغلی دی .

دچا به خه لره مانه له بله شي
چه نیکه بده په عمل موندله شي
هغه چه وکړي هغه به ور یبي
له خپله لاسه هره کر له شي

* * *

دچا په کور کښې روپۍ مهران دی
دچا په کور کښې درومرجان دی
که ته هیڅ نه لري ګومان دامه کړه
چه به دستا غوندي واړه ناتوان دی

* * *

دچا چه دننه سینه په درد وی
دمه یې عینې په آه سرد وی
که مرد دلاندې وی ښځه دپاسه
په دواړو تو که ظفر دمرد وی

* * *

دچرخ له لاسه زړ ګوتې رېږدی
داخوی به چېرې له لاسه پرېږدی
هر څوك چه وو ینې چه داغ په زړه لری
دداغ دپاسه بل داغ پرې کښېږدی

* * *

دځان دښمن دی دښمن چه یار ګڼي
دښمن چه یار ګڼي مرګ دې تیار ګڼي
هوښیار به ځان دنا دان په شمار ګڼي
نادان هغه دی چه ځان هوښیار ګڼي

* * *

دخپله لاسه چه ستمونه دی
ګوښې په مانه دی په عالمونه دی

دخپله لاسه لکه ښادی دی
دخپله لاسه / هومره غمونه دی

دخپلې چارې هنر ، يو هر لــرى
مغز يــې په سر کښې هومره څوسرلری
مزرى ګاو ز د ځنــګل پــه خو نــيسى
ګيدړ د شــلا نه و دښکار هنــر لرى

* * *

دخپلـــې خو نـــې د پوا ل کــه کوږ وى
دخپلې خو نـــې پــه ځښتن خــو ږ وى
زيست و روز ګــار يـــې پکښې خوندى‌وى
لـــو ښى کا لىـ‌يې په ده کښىـ‌بوږ(۱)وى

* * *

دخولې خبرى دې خو ږې ترمن (۲)دى
و بختــو رو وتـــه مـــن مـــن دى

ترخه ويل دې د خولې هر ګز نه وو
دا چه تر خه وايې دارو در من دى

* * *

د خـــولـــې ويـــل دې واړه نـــبـــا ت د ى
خـــوازه دې لاد ښکنځلو زيـــات دى

څوك يـــې چه ښکل کا سخ دهغو د ى
شونډې دې دواړه آبحيات دى

* * *

د دولت ستورى ګرځـــى قابل غــوا ړى
قابل چه بيا مومى نه پسې بل غواړى

که چيرې مل شى د نا قابل ســـــر ه
ټکاؤ يې نه وى رخصت ترې تل غواړى (۳)

---

(۱) بوږ = سنبال او محفوظ .
(۲) يو ډېر ښــه خوراك دى او ترنجبين‌ته هم وايى .
(۳) توقف ، ايستيا ، بدل .

دده پــه ذکر وا ړه ګــو یــا د ی
کــه دخشکۍ د ی که دد ریــا د ی
دده له حکمه و تلی نـــه د ی
که ناست په تخــت دی که په بوریا دی
* * *
دده پــه حــکـــم بــالا پستی شی
مستی خمار شی خمار مستی شی
نه تل بهــا ر و ی نــه تل خزا ن و ی
هستی نیستی لری نیستی هستی شــی
* * *
د رزی لا ګز لــری مقــراض سوزن لــری
یو جمدر ګوتې خوشحال خیــرن لر ی
کوچ یې اسان دی مشکل هیڅ نـــه د ی
غــم دیا را نو درد دو طن لـــر ی
* * *
دروغ چــه فاش و بې صرفــه و ا یــی
خپــل ځان په خپله خوار ی ته بیا یــې
تر دا هغــه بد چــه شیطا نی لـــر ی
فــکر فریب کا پـــه نفاق پـا یــی
* * *
دروغ د چــا دی د کـــم ذات د و ړی
یــا د کمــز وری پــه قــوت لـــړ ی
چه دایې نه وی دروغ بـــه و لې کــا
درو غ چه کاندی خوړوی په سړ ی
* * *
دروغ وعـــده د ې پــه مــار ښتیا لـګی
تر خــه د ښکلیــو لکــه حلوا لګــی
دبنو ناوك دې په نو رو نـــه پســـندم
پریږ ده چه واړه پــه زړه ز مـــا لګی

در ویش هغه دی چه ترس دخــدای لری
دنیکو فعــل د نیکــو را ی لــــر ی
تمه لــه چا نــه کــا لقمه حلا له خو ر ی
جدا له خلکه داستو ګې ځای لری
* * *
دریــا ب چــه لــو ی د ی هومره هواردرومی
شورو غوغا نه کا په خو کرار درو می
سیلاب په خو ځاخکی غږ پږ پیدا کــــا
بقایې نه‌وی په ډیر تلوار درومی
* * *
د ســـر داری چــارې د شــوا ر ې د ی
خو خو کمرې خوخو یــې لارې د ی
بــراق د عقــل د هــمت پیــد ا کــړ ه
پکښې بې شماره بلا تیا رې دی
* * *
د سر داری چه خوك هــو س لــــر ی
خپل ځان دې خاورې خپل مال دی خس لری
غم دو سلو (۱) دی دجنګ هیڅ نــه کا
کــه دخپل ځان سره یګا نه لس لر ی
* * *
د سر غلیم دې کــه دا نــا یی لـــر ی
بهتر تر دو ستــه چه‌کانا یی(۲) لری
توان یا د زرو یا د ځــوا نانــو د ی
لا ف دې هغــه کا چه توانا یی لر ی

(۱) په دریمه قلمی نسخه کښې د (وسلو)په ځای(حیلو) راغلی دی .
(۲) سا دګی او کم عقلی

دشاه پالنګ دې د موږی مسکن نــه شی
ګلزار دې ځای دزاغ وزغن نه شی
ګــل د بلبل دی بلبــل د ګــل د ی
په ښه جمال به غافل مین نه شی
* * *

دشپې خښتن دې سهار تــه ګو ری
ګوندې پرې وځېږی دسبا ستوری
هېڅوك د ې تمه امید پرې نــه کــا
باران په تږیو کښتو نــو ووری
* * *

دعشق په کار کښې یو هر(۱)ګډېږی
یا پکښې قهر ستــرګــې ر ډېــږ ی
دا دواړه تو که په عشق کښی یا د دی
سږی نــا حقه پــه باد ، ډډ پــږی
* * *

د عشق غمــو نــه تــر عمر ه سم د ی
په هره ساه پــه هــر هــر دم د ی
د نا مــر دانو ور سره کار نشتــه
غم د مردانو دی مر دان د غم دی
* * *

دعقل زاڼې چــه تــا لیــد لــې د ی
د صبر قازې چه تــا کتلــې د ی
که هر څو زور لری یا تیز پری لــر ی
دشاه د ستر ګو شاهین وهلی دی
* * *

دعوه د چارې په یــوه هــر کښې و ی
عقــل هم بو یــه چه یې په چر کښې وی
چه بېهو ده دروغی بلا هغه مو مــی
سر به هغه کښېږ دی چه یې پهسر کښې وی

---

(۱) هر ، دلته د شور او غوغا معنی ور کوی .

د غرو نو کانی تر حساب تېر دی
څه واړه کانی دلال په څېر د ی
که اهل و وینم زه به ترې ځار شم
اهل څوك نشته نا اهل ډېـر د ی
* * *
دغم فکر ونه په زړه کښې با ز د ی
تل دښادۍ وښکار ته سا ز دی
خدای به یې ښکار د ښا دۍ ساز کـا .
باز ونه کله خالی پر واز د ی
* * *
دمرد چه صبر چـه استقلال نــه وی
چه غم پرې را شی پکښې خوشحال نه وی
مردی یې هېڅ ده ز مـا په پـو هــه
که یې په جاه ودولت څوك سیال نه‌وی
* * *
دمرګ قتال د ی پـه هر هـر کلی
غشی په ګورت کښې نیاز من پرې ولی
چه مې په ستر ګو هغه یاران لید ل
اوس یې لیدل شی په سترګو ځلی
* * *
دملك سر دار دې هو ښیار قلا ش(۱)وی
تل دې له ښو سره په ښه معاش وی
ځای داشتی پـریښی بــو یــه
چه یې له چا سره جنګ وپر خاش وی
* * *
دننــه زړه مــې ور پسې رېــړ د ی
چه زلفې تاو کا دړی پرې کښېږدی
زوړ شوم نا رې و هــم تو به له عشقه
که مــې دلبر ې ور پسې پـر پـړ دی

(۱) چا لاك او غښتلی .

دنیا څو ډېره هومره یې غـم ډېر وی
چه نه وی نه خوری هم یې الم ډېر وی
هستی نېستی یې د واړه بـلا د ی
خوبی یې داده چه ورته کم ډېر وی
* * *
د وطن ونــې چـند ڼ اګــر د ی
خاورې یــې واړه مښکو عنبــر دی
که سرای و نورو ، و تــه سنګېړ د ی
کاڼی یې واړه ما تــه سره زر د ی
* * *
د هوښیا رانو ور مــو نــه ز ر د ی
دا دهغو دی چه پــرې خــبر د ی
چه د هوښیا را نــو ور مو نــه ، نه منی
دهغــو هر کلــه خاو رې پــه سر دی
* * *
دیار پــــه عیب چــه یار خبــر شی
یار ی یــې ولا ړ ه کــه پر ده در شــی
دیار دې عیب و هنر د ځــان ګڼــی
پوه دې په عیب هــم پــه هنر شــی
* * *
دیار مــې واړه د ستر ګــو تــور د ی
چه سپین و تور یې د چم د کور دی
چه د معشوقې تر سپی ځان ، ځار نه کا
مین یې مه بوله هغــه څه نور دی
* * *
ډېر څه مې وکړل ما وې که یار شی
دیدن یې وویـنم زړه مې قرار شی
چاوې چه صبر کړه صبر مې هم وکــړ
سیګڼ یم(۱) کله په صبر کــار شی

---

(۱) زړه وهلی ، زړه موړ شوی ،

ډېر دی چه ږېرې د شیخی پـو سی
ډېر دی چه می خوری رندی کښې اوسی
بنده د چا یـم د هـغـه کس یـم
چه یې نیـو لـی تر سر ه یـو سـی
* * *
ډېرې مرغـی پـه زړه د لکښې دی
سهار چه ږغ کا هغه مې خوښې دی
ډېر نعمتو نه مې په جهان کښې و لیـد ل
چه لوی نعمت دی ، نعمت خو غوښې دی
* * *
راغله اختـر او نـوروز همـغا ړ ی
مینـا خنـدا کا چغـا نـــه ژا ړ ی
ساقی دا وخت دی چه تو به نغـا ړی
ومایې را کړه زړه مې می غواړی
* * *
رنګ د تو تیا نـو لری شین کـوسی
هنر چه نه لر ی بې قـدره اوسی
چه اصالت لری چه ښـه خصلت لـــری
هغه به بخره له میا نـه یـو سی
* * *
رنګ رنګ ګلو نه په باغ کښی وا شی
لکه چـه ورشی هسې فنـا شی
ګر مـې هـېڅ نـه دی د باغ بلبلې
چه یې دا هو مره فر یاد ژړا شی
* * *
رو ژه دخدای له وبر ې درللـه شـــی
که نه په هر چر ته روژه خوړله شی

په اشنایی کښې مهر اخلاص بـو یـه
که نه په درنګ کښې اشنایی بله شی

روغــه کتهوه پــه نغری سمــه و ی
ما تــه کــتهو ه پــه نــغر ی خــمه و ی

ځینی (۱) چه ځان خوار کا ملته (۲) روپۍ شی
ملتــه روپۍ پــه قــدر کمــه وی

* * *

زار د هغو دی چه آز حــا جت لــر ی
نه ډېر دولت لری نه ډېر همت لــری

هغــه بــه ولې د اسمان منت و ړ ی
چه مستغنی وی عیش وعشرت لری

* * *

زاړه واړه غوا یه په غابنې ځان وړی
چه توان قوت لری خپل بار په توان وړی

خوشحاله پرېږده خپل بار په خر و مه وړه
مست مست بارونه مست مست اوښان وړی

* * *

زاغ وزغن دې پــه باغ کښې ورځــی
چینجی مینجی خوری په ځانګو ګر ځی

خوشحال و چا ته خپل کار ښکاره کــا
بلبلې نشته چه بانــدې غــور ځی

* * *

زر دخا نــانــو دبــاد شا هــانو دی
د نوکرا نو دولت خوا هــا نو دی

خوری د ې ګټی دې عیش و عشرت دې کا
نور ځو ك چه زر ساتی دګمراهانو د ی

---

(۱) په چا پی نسخو کښې د ځینی کلمه (جن) لیکل شوې ده ·
(۲) کلپه او ناسره ، سولېدلې ·

زر شوی د زړو پــه حال خبــر وی
چه چېر ته خېژی په کوم مقــر و ی
زر به په سپینو شګو کښېږ نه مو مــی
شګې یې تورې تر خا کسترو وی
* * *
زر که دې لېرې له بازو ګــر ځــی
سر ږه (۱) دې لېرې له پړانګه غور ځی
ګڼه بڼې به یې په پور ته غور ځــی
په څوك کښېوزی نوره به پرځی
* * *
زړه چه نسکور وی غم یې په کور و ی
که ډېر یې زر وی که ډېر یې زور وی
تل به پر ي پورې دسیا ل پېغور وی (۲)
مخ یې که وینځې هم به یې تور وی
* * *
زړه دې دهــر چــا ســره صفــا وی
په چا ګرم ، مهٔشه که دې رضا وی
که څوك نا حقه له تا پر خــا ش کــا
اندوه یې مه کړه ظفر به ستا وی
* * *
زړه مې په تن کښېږ په ډېر اشوب شی
چه بنکلی یاد کړم کله مې خوب شی
زوړ شوم لا خیال لرم د مهو شا نــو
په سپینه ږیره هم عاشق توب شی

---

(۱) غر څنی ګڼه . (ظفر اللغات) .
(۲) په دوهمه قلمی نسخه کښې (تل به په زړو دسیال) .

زړه مې زخمي دی وینې تـرې څاځي
ژاړم له درده څړ یکې ترې پـا څي
تیر یې خـو ړ لی دهسې لینـد ې د ی
چه په اواز یـې د ژ ړ ی نـا څـي
* * *
زړه مې له ښکلیو سره بیا بیو ور غـواړي
ګوره و ځان ته بلا په زور غـواړي
زلفـې چه تاو کـا پـه مخ یې پر پړ د ی
جنون پرې زور شو بیا رنتهبـور غواړي
* * *
زړه وهغه ور کړه چه زړه دې وساتي
که دوه که درې وی چه زړه دې ښه ساتي
زړه یو ښه څیز دی و ښه (۱) یې ور کـړ ه
نه و هغه ته چه ز ړه دې نه سا تي
* * *
زلفې چه تاو کا پـه مخ یې پر پـړ دي
ښکلی ګلو نه په بار خو کښیږ دي
زړه مې بلبل شی ور باندې را شـی
له ډیـر ه شو قه و رباند ې ر پـړ دي
* * *
زما په باغ کښې ګلو نـه ډیـر د ی
خدای یې را پرېږ ده په هرهر څېر دي
داغ مې پـه زړه باندې د معظـم دي
دا داغ چه راغی نور مې پرې هېر دي
* * *
زوړ که باد شاه وی که او لیـا و ی
دځـوانـې ښځې ځینې بـلا و ی
زوړ یې که هر څه د ځان مز دور شـی
د ځوانې ښځې نو ره هـوا وی

---

(۱) په چاپي نسخه کښې د(ښه) په ځای(سپی) راغلی دی .

زویه وروز مه شه چه څوا نمرد نه وی
مرد دڼیکلې مرد د نبرد نــه وی

مېړه یې مه بوله ښځه پرې نوم کښېږ ده
چه دجنګ غشی وربانديږ (۱) وردنه وی
* * *

زویه هغه دی چه په رای داب (۲) وی
که نه له ځانــه پیدا غضب و ی

که هر څو ښــه دی چه ستا نسب دی
غــا فل ترې مه شه اقر ب عقر ب وی
* * *

زویه هغه دی چه خوی د بــاز لــری
لوی لوی ښکارو نه لوی لوی پرواز لری

نه خوی د چرګې نه خوی د زا غ کــــا
چه ځان دغو لو خوراك ته ساز لری
* * *

زو یــه هغه دی چــه فد و ی دپــلاروی
دپلار تر هــرې خبرې ځار و ی

چه دایې نه وی زر دې پــه ګور شی
پیدا د پلار نه دی یو عیب وعار وی
* * *

زویه هغه نه دی چه هــوا پرست و ی
زویه هغه دی چه حیا پرست وی

عهد وفا لــری سخــا عطــا لــر ی
طا عــت تقو ی لر ی خدا پرست وی

---

(۱) دګلابوګل .
(۲) پلار. په دوهمه قلمي‌نسخه کښې (داب) په ځای (ادب) راغلی دی.

ږیــره دي کلــه دپښتــانــه شــی
چه دمغول په منصب یې ز ړه شی
مغل کمزو ری غلیم بــې رحــم د ی
کله یې زړه وی چه پښتون ښه شی
• • •
ږ یره غــا ښو نــه مــې جدا جدا وا یی
ځوانی دې ولاړ ه راتــه هم دا وا یــی
چه چا ته وګورم یا چا تــه وخا نــدم
راتــه دادا وایی کا کا بابا وایی
• • •
ساقی را پاخه پسر لــی تېرېږی
اهاړ را درومی غارمه ډېــر ېږی
ګوره لا کلــه به سهیل را خیــژ ی
چه درد و غم به دغارمه کمېږ ی
• • •
ساقی غوړېږی سل برګ په منــــی
دلبرې خیال کا د ده پــه مینــی
دچا په بخــره د میــو جــا م شــو
دچا په بخره پو پــی (۱) پمنی
• • •
سبا به تل و ی مسا (۲) به تل را ځی
چه یو تېر ېږی باندی به بل راځی
یو به خوشحال غوندې پیدا څوك نه شی
په شپه په ورځ کښې خوشحال که سل راځی

---

(۱) پوپی یو قسم وابښه دی او پمنــی یوغر نــې تریخ بوټــی د ی (ظفر اللغات) .
(۲) مسا = ماښام .

سترگې چه نه وی مخ به پسا له نه شی
خوی یې چه بد شی دخپل کاله نه شی
فهم کـه وکـړې دا حال بـه ووینـې
عیب چه ډیر شی عیب بداله نه شی
* * *
ستر گې دې نه دی ستوری د بخت د ی
چه دز ته گوری ښبنتن د تخت دی
دناز په غشیو هغـــه شیخان ولـه
چه لاف د زهد کا په زړو نو سخت دی
* * *
ســخ دهغــو د ی چه بــې خبر د ی
بــې غمه خو ب کا په خو ب وخور د ی
روز گــار پــه غــم دی د خبــر دا رو
چه په زر گونو فکرو نو سر دی
* * *
سخ دهغــو دی چــه پــاك پیــدا د ی
که انبیا دی کـــه او لیــا د ی
خلاص دی د نفس د شیطا ن لــه شره
په ښــو پــه بد و ځــا یــی دا نا د ی
* * *
سخی که لك ور کــا و ده ته كك و ی
بخیل که كك ور کاو ده ته لــك وی
دهغو ور کړه په ور کړه مه نیســه
چه ور کا زړه یې لــه غمه ډك و ی
* * *
سر دار هغه دی چه شرم ننگ لــری
مدام د شرم توره تر ښنگ لــری

صرفه په زر نه کا صرفه په سر نــه کـــا
چه دښمنان وی له هغو جنگ لری

سړی په اصل سره یکسان د ی
که چو هر ی دی‌که بادشا هان د ی
فرق یې په فعل په خوی هنر و شو
ځکه دوی هسې سره شان شان د ی

* * *

سړی په خپلو سره بې غمه و ی
ونه په خپلو ولیو محکمه و ی
دچا چه نه وی خپل زو یه و رونه
سیالی یې کله له سیاله سمه وی

* * *

سړی په مثل کاڼی د کوه د ی
په خو خورنګه ګروه ګر وه د ی
چه جوا هر دی پکښې کم کم شته
نابود بدرنګ یې انبوه انبوه د ی

* * *

سړی چه ځوان وی دجونو ځان و ی
زوړ یې په ځنګ کښې لکه‌سوهان‌وی
زاړه که ښه کاجو نه دې نه کا
ځن دې ها له کا که دی سلطان وی

* * *

سړی چه زوړ شی زبون په تن شی
حواس یې نور شی په زړه هېر ځن شی
لطیف خواړه دې خوری د خول دې کم کا
که کا نو خېز ه چه پر ې میېن شی

* * *

سړی چه زو ړ شی ورنځ تـه جو ړ شی
که ډېر هوښیار دی په عقل بوړ شی

چه بې ایمان وي حرص یې زیات و ی
که ایمان دار وی له هر څه موړ شی

سړی چه وږی شی کچکول په لاس وا خلـی
شهوت پرې زور کانور نور وسواس واخلی
خدایه په خپل کښې خو شحال معمو ر لر ه
چه پل له لارې ، نه کوز وپاس واخلی
* * *
سړی چه ولا مبی په او بـو پا ك شـی
سپی لابد بوی شی چه خو نمنا ك شـی
احمق چه و لو لـی خو کتا بـو نـه
په څه خولو سته یا وه کـا واك شی
* * *
سړی که زوړ وی ښه زو یه ځـوان لری
څه به اند وه لـری څه به ارمان لری
دپلار ښه زو یـه دو بار ه عمـر د ی
بد زویه پلار لره بلا شا ن ، شان لری
* * *
سړی که وړ ونی شی او اره کړو نی شی
دلو یو لو یو بخر و بـه وړو نی شـی
راشه په خپلو ستر گـو یې وګو ره
فایده یې کومه ده سپی چه خو ړو نی شی
* * *
سړی هغه دی چه تر س دخدای لـری
خپل ځان عا لم تـه ادم نمای لری
حق د حقدارو اشنا په ځـان لر ی
خوبی د عقل خـو بی د رای لـری
* * *
سړی هغه دی چه نو ش ونیش و ی
نه بد گویی لری نه بد اند یش وی
په هره چار کښې همت په ځای لـری
که مال و ملك لری که خوار درویش وی

سفله دي هيڅيري د مال ښښتن نه شي
دښو جامو دې په اغوستن نه شي
شمله چه پرېږ دی کټوه ښخــه کــا
لــه کبره خيا له و رته ګفتن نــه شي
* * *

سفله چه زر ټول کــا د مال ښښتن شي
وراني په لاس واخلي دځان دښمن شي
دنېکخو اهانو په پند پر وا نــه کــا
دبد خوا ها نو په صحبت مين شي
* * *

سګان دبدر (۱) له نوره جنګ لــری
ګونګټ د مښکو له بو يه ننګ لری
سره زر څه نور څه دی زر نيخ (۲) څه نور څه دی
څه شو که بر ينبی د زرو رنګ لری
* * *

سواره د عقل په براق ښا غلــی د ی
له عقله پلی پــه غم نيو لــی دی

بو در ی (۳) دعقل دبرا ق هم بده ده
سواره يې سر په ختی لوېدلی دی
* * *

سهار چه پاځی په استغفار کښېنی
پــه يا دو لــو د خپل غــفار کښېنــی

دا وخت نور مه ګڼه ز ما په پو هــه
ګڼه په باغ کښي دا رالقرار کښېنی

---

(۱) پوره سپوږ مۍ .
(۲) ګوګړ .
(۳) تکره خو ږل .

سهیل (۱) چه و ختیژی او ړی تمام شی
زیرمه د ژمی د سر انجام شی
په اته میاشتې هسې هوا وی
چه دځوانانو پکښې هر کام شی

• • •

شاهان بل اور دی چه هر څه نغړی
اعوان سکر و تې داور بخری
چه یو بخری ځان ته پرې نه ږدی
هوښیار به تل وی وا ور ته څری

• • •

شاهین که پر لری سر دار که زر لری
سر دار که زر لری شاهین که پر لری
فهم په سر لری کام به در بر لری
کام به در بر لری فهم په سر لری

• • •

شرم یې نشته څاروی خودار لری
نه هو مره مهر په مور په پلار لری
فرق د سړیو څارو یو هومره دی
چه شرم مهر په خپل مقدار لری

• • •

شمع که هر څو سوز او گداز لری
ژاړی په او ښیو چهره طراز لری
دا کار یې واړه زما خوښ نه شو
چه خپله ژبه اوږدم په راز لری

• • •

شونډې دې نه دی آبحات دی
زلفې دې نه دی مښک حیات دی
مخ دې بهتر تر نسرین د باغ دی
سنان ، سنان دې با نه یکذات دی

---

(۱) سهیل دمیزان ستوری .

شیخ یې مه ګڼه چه نفس یې خوارنه وی
با تور یې مه بوله چه پرې پر هار نه وی

که دا نشمند وی تفسیر په یاد لو لـی
چه ډېر ویل کا دی به هو ښیار نه وی

* * *

شېکری خوړی (۱) نیسی زاڼې شنقر نیسی
شرمښ بېهاڼ وهی مزری ایغر(۲) نیسی

ولوی مېلمه تـه سرې ساغـر نیسی
مفلس مېلمه ته سا غر لا غر نیسی

* * *

ښځو تـه ډېـرې بـلا تعینې د ی
څو ستر پوښې هو مره مهینې دی
چه بې اد بـې بی نما زې لویې و ی
ورتـه نظر مه کړ ه که مخ نسرینی د ی

* * *

ښځه چه ډکه شی که کښېنی مار را وړ ی
مار ښه ، نه زویه چه نا هموار راوړی

ګل چه نه رنګ لری نه بوی ښه کـا ندی
ښه دا چه ونه بوټی خار دار را وړی

* * *

ښځې پـه اصل کـړ ې ناسـمی د ی
په عقل کمې په دین هم کمې د ی

شو مت یې او ر د ی چه چېر ته و لګی
پـه دم پېړۍ په دم ادمې د ی

---

(۱) خوړی یوه کوچنۍ مرغۍ ده .
(۲) مست او قوی څاروی .

ښځې دهېچا په رګ ریشه نه دی
څرګنده چر ده و فا پېشه نه دی
په خپل مقصود د ی په غرض سود د ی
په نورو چارو کښې همېشه نه دی
* * *
ښځې ښه خیز دی که په مخ ښکلې وی
له موره پلاره پاکې زو ولې وی
که دایې نه وی زر دې په ګور شی
چه نه لیدلې نه چا کتلې و ی
* * *
ښځې طرارې دی ښځې مکا رې د ی
ښځې مکارې دی ښځې طرارې دی
که هر څو یارې دی ښځې اغیارې دی
ښځې اغیا ر ې دی که هر څو یارې دی
* * *
ښځې له ځایه په عقل کمې د ی
سمې به نه شی پیدا نا سمې دی
وفا ترې مه غواړه په یارۍ یې مه ویاړه
که دې محر مې که نا محرمې د ی
* * *
ښکلې هغه ده صفت یې ښا یی
په هر هر ځای یې وګړی ستا یی
هغه دښکلیو په شماره نه د ه
چه دکور ډمه یې ستا ینه وایی
* * *
ښه به ترې څه غواړې هغه چه تل بدوی
هم په بازل(۱) بدوی هم په ساتل بدوی
دبل علاج وشی د خپل علاج نه شی
چه دې بد خواه شی تر بل نه خپل بدوی

---

(۱) ښندل .

ښه خوی بد کېږی بد خوی ښه کېږی
په صحبتو نو که څوك پو هېږی
نافه دهو ږی په بوی خوش بوی شی (۱)
حنظل شکر وسره خوږ پېږی

* * *

ښه ښه ځوا نان دی دننګ یك دلی
حاضر په کار کښې سواره هم پلی
ډېر زر دولت وی باندې خور و لی
ور ته بخښلی هر څه بخښلی

* * *

ښېر ې دې وا ړه په ما دعا لګی
ښکنځل دې واړه په ما حلوا لګی
که ته مې ولې په سرو سکر و تهو
واړه به ګل د لاله په ما لګی

* * *

ښې ښې دلبر ې ددو ی (۲) یارانې د ی
په دادنیا کښې غمګسار ا نې دی
چه خوله یې ښکل کړې زړه دې ډېرښه شی
په دواړو شونډو ، شکر با رانې دی

* * *

صبی که هر څو مر سل نبی و ی
دپلار له مینې بیا ا جنبی و ی
یعقوب چه ړوند شو یو سف هیڅ نه شو
په غم کښې ستر وی نه چه صبی وی

---

(۱) په چاپی نسخو کښې (نه شی) دی، مګرپه قلمی نسخو کښې خوشبوی شی را غلی دی .
(۲) په او له قلمی نسخه کښې د (دوی)په ځای (دین) راغلی دی .

طبیب چه ښه وی رنځور قضا و ژ نی
طبیب چه بد وی رنځور دوا وژنی
. . . . . . . . . .
. . . . . . (۱)
* * *

عاشق په وخت د وصال سلطان و ی
هاله یې مه وینې چه پرې هجران وی

چه یافت یې څومره خوښی یې هو مر ه
څو چه کا لی وی هسې یې زیان وی
* * *

عالم پر پو و نـی تلـې کب ګـو ر ی
کارونه خدای کا ، نه یې دا ستوری

نظر دا نـه کـا چه افـلا کـو نـه
دچا دپاره سره تـل ښو ری
* * *

عام دې د خاصو په مجلس نــه شی
یار فرښتو سره ، پېری ناغس (۲) نه شی

دناسو کار له نسنا سو مه غـوا ړه
دپیا زو بوټی به ګل دنرګس نه شی
* * *

عجب کارو نــه سبـا بېګا شــی
نېکخواه بد خواه شی ، بد خواه نېکخواه شی

زړو نه د خلکو د خدای پـه لاس ګـنه
تبد یل د خلکو پـه هـره ساه شی

---

(۱) په قلمی نسخو کښې هم بل بیت نه لری .
(۲) کلپ ، خیرن .

عرب هم ډېر دی عجم هــم ډېــر د ی
شماره يې نشته تر حساب تېــر د ی

نور ښکلــې واړه غــټ وا ړ ه ستو ر ی
تا غونــد ې کله دنمر پــه څېر د ی
* * *

عشق چه په خپلو مو جو نو سر شی
ترا با سينده لا زور ور شـــی

بلا يې ليرې هر څــه پــه مــخ وړی
چه کاڼی بوټی پــه مخــه ور شی
* * *

عشقه ستا واړه چارې او ترې د ی
چه زور ور يې وا ړ ه بهتر ې دی

تر مرګــه پورې سره نظــر لــری
څلمی با زو نه (۱) جونې کو ترې د ی
* * *

عفو کرم دې په هر چــا عام نــه و ی
په کس نا کس دې دا کار مدام نــه وی

کس چه خطا و کا باندې عطــا بو يــه
ناکس لا بدشی چه انتقام نه وی
* * *

عمر که ډېر شی بيا دی هفتاد شـــی
تر دا د پــا سه لکــه ر مــا د (۲)شی

چه د ځوانۍ سا عت را يــا د شی
په هر زمان مې پسې فر يــاد شی

---

(۱) په او له نسخه کښی داسی دی : ځوانان بازان دی ·
(۲) ايری ·

عیب یې مه ګوره که ډېر هنر لــر ی
څه شو په مخ که تر سیری لمر لر ی
ســر چــه د تــاج د خولۍ لا یــق و ی
څه شو که څه خو پخی د سر لری

* * *

غاښ چه دې وښوری مر یی د غل شی
بد خویه ښځه سر دې یې کــل شی
چه اوا ره شی هاله تر ې خلاص شـــی
ګنهه وتا تــه وا ړه خلــل شـــی

* * *

غشی چــه ډېــر ولی ښه تېر انداز شی
چه مشق دخط کړی وخط ته ساز شی
کــار د مــحــنت دی د مشقت د ی
ورو ورو په هر هــر هنر ممتاز شی

* * *

غشی چه راشی په واړه تــن لګــی
ګوره رسا لګی که بر سپرن لګی
بــده خبــره تــر غشی بــده ده
دزړه په سر باندې د مردو زن لګی

* * *

غشی چه سم وی ګوزار پرې ښه کېږ ی
چه ښه سم نه وی ګوزار پرې نه کېږی
راستی په هر څه کښې لکه سره زر ده
په لاس که زر لرې په زر هر څه کېږی

* * *

غشی چه کوږ وی یا عیب جن و ی
ځای په تیر کیش کښې (۱) کله سودمن وی
یا یې علاج وکړه چه با ور ی شـــی
یا دې یـــې فـــکر ددو ر کـــر د ن و ی

---

(۱) په دریمه قلمی نسخه کښی (ځای یې په کیش کښې) راغلی دی .

غشی دټینګې لیندې خـطا شـی
دنرمې سستی ګـزار رسا شـی
ښه تېره توره په لاس کښې واوړی
دپخې تـورې ګوزار بـلا شی
* * *

غلیم هو ښیـار ښه دی که مرګ دې غواړی
دېر به تر جنګـه په آشتـی ویـا ړی
هوښیار چـه نه دی غلیـم یې مه ګڼـه
پر ېـږ ده په خپلـه به خپل ځان وژاړی
* * *

غم بـه ددین خور ی چه مـو منان د ی
دا نـور غـمو نـه واړه اسـا ن د ی
چـه دین یـې نه وی که پـه تخت کښېنی
ښا دی یـې غم ده که بادشاهـان د ی
* * *

غـم چه په زړه کښـې ددلا رام لـر ی
ګـر م دی که فکر دننګ ونام لـر ی
چه یار یـې څه وی هسې دې ،دی ،و ی
کـه دین دکفـر کـه داسلا م لـر ی
* * *

غونـچه دبا غ دې تل تل غـوړېـږ ی
پر ې ور ې سترګې دبلبل مړېـږ ی
خـدای دې تـا زه لری دبا غ ګـلو نـه
چـه ور تـه سترګـې دبلبل غړېـږ ی
* * *

فتنـې دښـځو هرګو ره ډېـرې د ی
پـه شیطـا نی تر شیطا نه تېر ې د ی
لکـه لټـکـه (۱) هسـی ټـکی لـر ی
زهر پـه خوا کښې ښکلې برسېرې د ی

---

(۱) ګورمار .

فرزند که ښه دستر ګو نور شي
دستر ګو نور شي دزړه سرور شي
فرزند که بد شي غا ښ دې رنځورشي
غا ښ چه رنځورشي‌نو دامبور شي
* * *
فرزند که هر څو دپلار عاصي شي
چه پلار ته پرېوځي بيا په خلاصي‌شي
خداي په بنده باندې لا ډېر مين دی
له هر ګنا هه په تو به خلاصي شي
* * *
فرزند هغه دی چه شر منا ك وی
له بدو چا رو په زړه کښې پاك وی
چه شر منه لري خبره نه مني
چه لا هلك وي زر دې هلا ك وی
* * *
فرزند هغه دی چه متقي وی
نه بد ګومانه بد خوی شقي (۱) وی
خبر چه نه وي د خدا ی له حقه
دانور حقر نه پر ې نا حقي وی
* * *
فرښتې له نو ره، پېر ی له ناره دی
که پرې خبر يې سړی‌له چاره(۲) دی
څکه دا هسې ډېر ې فتنې لري
له با دو خا که له آب ونا ره دی
* * *
فرق د سړ يو سره بسيار وی
سړ ی هغه دی‌چه څه هوښيار وی
چه څه پر ې تېر وی څه يې ليدلی وی
علم ادب لر ی په صحبت تيا ر وی

(۱) بد بخت (۲)چار = څلور، مطلب څلور عنصره .

فصل پــه فصــل کنــدو ډ کـیږ ی
لکـــه ډکـیــږ ی هســـې تشـیږ ی
څو دا اسما ن شتــه په (۱)سرخرخېږی
یو فصــل درو مــی بــل را رسېــږ ی
* * *
فکر مــې وکـــړچــه دا انــسا ن د ی
ځینــې فرښتې دیځینې شیطا ن د ی
ځینې سړی دی پــه خو ی خصلت ښې
ځینې بــې شــکــه لــکـــه ددا ن د ی
* * *
قابل که نه وی دو لــت کــه بیا مو می
لکه یــې بیا مومیهسې ترې بیا درو می
باور پــه بخت مه کړه باور په تخت مه‌کړه
اسما ن یــې ونغاړیکه شاهنشاه درومی
* * *
قابل هغــه د یچه درست طلا شــی
لــه ز رو سیــمه پــه استغنـــا شـــی
نه یــې زکو ة وی نــه یې قــربان و ی
هســـې تر ې درو می لکه چــه را شی
* * *
قاضی په وخت دقــضا پــه یاد شـــی
غا ز یپــه وخت دغزا پـــه یـــاد شـــی
طبیب پــه وخت ددوا پــه یاد شـــی
زاهــد په وخت ددعــا پــه یـــاد شی
* * *
قام ته مــې کله لو یــی ښکـا ره د ی
پـــه وړو چـا رو ښې اوا ر ه دی
لاس مــې نیو لــی د ی په دوا ړو غــوږو
تر ې توبــه ، تو به چــه هېڅکــاره دی

---

(۱) په دریمه قلمې نسخه کښې (دیږې) راغلی دی .

قربان تر خاصو چه خاص الخا ص د ی
په زړه لـه نورو فکرونو خـلا ص دی
که ډېر غمـونـه ور باند ې را شــی
تسلیم قضا تـه په ډېـر اخـلا ص د ی

* * *

کار یـې ښکاره شی ونه چه بر واخلی
یا خـوږ ثمر واخلی یا تریخ ثمرواخلی
فرزند هم هسـې دو نـې کار لــر ی
یا ښـه هنر واخلی یا بـد هنر واخلی

* * *

کاږه کـا رونـه د انـا تـه سـم و ی
ښـه سم کارو نه نادا ن ته خم و ی
فرق دهو ښیار دنا پو ه پــه دا وشو
پــه دا خبره به ، خبـر عا لم و ی

* * *

کاهـی یا قوت دی ګـیاه کیمیـا د ی
شنا خت یې هغه لری چه څوك بیـنا دی
فرق دسړ یــو تر منځ بـېشما ره دی
څینې سړ ی دی څینـې چـار پـا ی دی

* * *

کبلی (۱) چه پر پوځـی موروړ ته و دری
په دوه در ې میاشتې په پیـو ولــر ی
که پر ور ش دی د کبلــی څلـه د ی
څو ك یې په زړه کښې دهوسیووکری

* * *

کریم هغـه دی چـه خو ش معا ش و ی
هم خطا پو ش وی هم عطاپوش وی
چه ورکـا خوښ شی ډېر ورکړه لږګنې
باند ې د هـر چـا شاباش شاباش وی

---

(۱) کبلی = دهوسی بچی (ظفر اللغات ) .

کړل دی ویل دی دوا ړه اوا ن لـر ی
چه وخت یې تېر شی افسوس‌ارمان‌لری
چه کار دنن ورځـې‌پرېږ دی سبا تـه
هوښیار به نه وی دا خوی نادا ن لر ی
* * *
کلپـه روپیـه ښـا یستـه رو غـه و ی
خوچـه سوراخ شی‌نوربی فروغه وی
هیڅـو ك دخپلـو شنـوبو بد نه وایی
صفت دهـر چا له خپلـه دو غه و ی
* * *
کله یار غـوا ړ ي کلـه یـار در شـی
کله کـار غوا ړي‌کلـه کار در شـــی
اسما ن پـه ډو ل ډو ل تـېر ی کـــا
خوشحا لـه ګـو ره ګوند ي وار درشی
* * *
کوم دی چـه وا ړه خو بـی‌ کل لر ی
خـمار د مـل شتـه خا رو نه ګل‌لری
یار که نور ښـه د ی یو خو ی یـې مه‌ګوره
اکثر کـه ګـو رې حکم دکل لـــر ی
* * *
که باد شا هان دی که درو‌یشـا ن دی
کـه په دا منځ کښې‌ښه ښه‌ځوانان دی
که په زرګونـو کا لـو نـو پـا یـی
عا قبـت وا ړه د ګـو ر ستـا ن د ی
* * *
که بخـت مې یار شـی یار مې به یارشی
بو سـه به را کا را بـه کنـار شـــی

چه مـې نېکخـواه دی زړه به یې‌ښه شی
چه مې بد خواه دی هغه به خوار شـــی

که په ګناه کښې سبا بېګا وی
ګناه يې نشته چه څوک اګاه وی
که هيڅ ګناه نه کا په غفلت کښې اوسی
هم دا غفلت د غافل ګناه وی
* * *
که څوک ايغر (۱) دی که څوک اخته (۲) دی
هر څوک په خپلې چارې اخته (۳) دی
څوک سره مينې شير و شکر کړه
څوک سره ګوره اور او پخته دی
* * *
که څوک په ځير ځير ويل وېر ښړی
خوشحال نه وېره کا نه شرمېږی
هوښيار به وا ړه په دا پوهېږی
چه کاږه ښړی کاږه لويږی
* * *
که څوک نېکان دی که څوک بدان دی
په دا دنيا کښې چه په هرشان دی
مه يې ستاينه کړه مه يې غندنه
ته به يې څه کړې چه دخپل ځان دی
* * *
که دنيا تو حلوا پخه شی
په ناګهانه په سپی جوته شی
نور دسړيو له کاره ووځی
جوته د سپيو په سپی خوړه شی

(۱) مست او اندېر .
(۲) خصی ،(۳) مشغول .

که دي دیـا ر پــه یار ی ز ړه و ی
دیـار بـه هـر څـه و تـاتــه ښه‌و ی
قدیم بې مثله دی عیب یـې نشتــه
حادث به هیڅـیر ي بې عیبه نـه و ی
* * *
که دکه ښـځه کښېنی یو ددرا و ړ ی
بهتـر تر دا دی چه بـد ولـد را و ړ ی
دا ځـا ی د حیر ت د ی خو ك به څه دم‌وهی
بدان چه ښه راوړی نېکان‌چه بد راوړی
* * *
که زړه خو ك تنګ کا چه یې قضانه وی
که تل جنګو نه کا مرګ یې روانه وی
قضا چه و رشـی بـلا پر ي سازه شی
که په ملکـو نـو چـیر ي بلانـه و ی
* * *
که زړه سخـی لر ی چه مال یـې نه وی
په ځان مې ولیده څه حال یې نـــه و ی
که باز دي وا ړه هنـر د ښکار لــر ی
ښکـار به پـه څه کا چه بال یې نه وی
* * *
که ژا ړې ژا ړه پـه ژړا څـــه شـــی
کـه په ژ ړا د ي لیـمه ړانـده شـی
هغه چه و لا ړل لـه د ي جها نـــه
کـه‌ته‌باور کړې بـیر ته را نه شی
* * *
که سترګـې نه لـر م چه یې وګـو ری
بې د عینـکو د کتـا ب تـــو ر ی
پیر ی ته تنې کړ ي شکـر و کـا ږ م
چـه لا پرې و ینم داسمـا ن ستـو ری

که سحر دستر ګو غمزې یې(۱) دادی
لکه چه ستا دی بلا دې دا دی

خوږې خبرې دې خو ږې شکرې دی(۲)
مشك و ګلاب دې پکښې ادا دی

* * *

که سر د ښځې سپینې و ړی شی
زړه یې و . . . ته هره ګړی شی
سړی نه ده لکه پېړی ده
چه . . . . .پرې ولاړشی هاله سړی شی

* * *

که سوختګان دی که آموختګان دی
دزنګوزړونو افروختګان دی
خدای یې روزی کړه ښادی یې خپله ده
چه دغمو نو اندوختګان دی

* * *

که شېرمردان دی هغه ځوانان دی
چه دوست دښمن سره په خوی شادان دی
تل خوښی له دیو یاران دوستان دی
تل ترې په تمه لا دښمنان دی

* * *

که کړم که نه کړم دوا ړه بلا دی
که و ړم که نه و ړم وا ړه بلا دی
که خورم که نه خورم وا ړه بلا دی
که مرم که نه مرم دواړه بلا دی

---

(۱) په اوله قلمی نسخه کښې اوله مسره داسی ده : که سترګې وروځې غمزې یې دادی .
(۲) په اوله قلمی نسخه کښې د (دی) په ځای (شوې) دی .

که لال و در او یا قوت الماس دی
وا ړه دا نا س دی وا ړه دانـاس دی
چه ناس دې نه وی په سین کښې پرېوځه
کـه جوا هر دې بهرو ن تر قیا س دی
* * *
که مې په ډېر ه ژړا لـېمه و وځـي
یارمـې نا تر س دی په دایې خـه ووځي
ګـلګو نې او ښـکې سا ړه اهـو نـه
څـه‌مې له ستر ګو څه مې له زړه ووځي
* * *
که میـنـد ې لنـګې دا پـر یـد و د ی
دو یو د تو رې ،تورې ددو یـو د ی
ددین پـه کار کښې کـه آرا سته و ی
عز ت د خپلـو هم د پر د یـو د ی
* * *
که نا دا نا ن دی کـه هوښیا را ن د ی
ګوما ن دا مه کړ ه چه ښکـا را ن دی
خوا ږه تر خـه یـې وا ړه پـه کار ګـڼه
چـه پیـدا شو ی پـه دا بـا را ن د ی
* * *
که نور خـه نه و ی سړ ی چه زو ړ شي
دکنـګـا شو نو په کار کښې‌جوړشي
ځوانا ن چـه پنـد نه منـی د ز ړ و بـدکا
دبـد خـوا ها نو ز ړ ه به پرې سوړشي
* * *
که ور تـه وایـې کلـه پـو هېـږ ی
قرا ن‌کـه لولـو کلـه ګـر و هېـږ ی
دپلار په پند یـې و تنه (۱) نه وی
بـدان په خپلـو بد و ستو هـېـږی(۲)

---

(۱)باور ، اطمینان . (۲) خپه کیږی اوستومانه کیږی .

که هر څو دو ر ي درا ز ي بلـېږ د ی
په مرګ بـه وا ړه پـه مځکه کښېږدی
حاصل دعمر خو دا دو ه تو کـه د ی
چه وړاند ي وروسته دوروسته پرېږدئ
* * *
که هرڅوښه شی بيا دباد شا ه شـــی
لښکـر دو لت لر ی صا حب دجاه شی
بيا بـه تنها درو مـی د ګـورو خولې ته
په خپـل عمل بـه هالـه اګا ه شـــی
* * *
که يار زما د ی درست بـه زما شـــی
سستـی به پر ېږ د ی چست به زماشی
زړه بـه وز ګـار کا لـــه غير ه فکـر ه
په شپـه او ورځ به په لوست زما شی
* * *
که يار دوا ړه (۲) وبلـه رای شـــی
درومی لـه ژبې په زړه کښې ځای شـــی
چه دا بار يکې معنـی يې بيا مو ند ي
په هغـه کس دې رحمت د خدا ی شی
* * *
ګرېوا ن يې تل تل لـه ګله عار لر ی
مـږ ګا ن يې تل تل کشته بسيار لر ی
چه يـې زما غوند ي د لبر ه بيا مونده
هغـه لـه نو رو سر ه څـه کـار لر ی
* * *
ګل د ګلابو نيست و مـو جـو د شـی
لکـه مو جود د ی هسې نا بو د شی
که بوی يـې پا تې شـی په ابګينه کښې
په هغه بو ی يې هرڅوك خوشنو دشی

---

(۲) په چاپی نسخه کښی (که ياری دواړه) دی .

گلزار تـه راغلـه گـلو نه چونې (۱)
تر مخ یـې نه دی لا لـه مخ رو نـــی
چه کور تـه درو مـی لـــه گلستانـه
گل یـې لمـن نیسی لا له لستو نـی
* * *
گـل یې له مخه د خو بی انـځور غواړی
خواږه یې شهدله شونډوپور غـواړ ی
ډیر یـې په طور د شیـخ صنعان کړه
سترگـې یې ښه ښه شیخا ن لانورغواړی
* * *
گناه که هر څو د سړ ی ډیـر شـــی
په شمار دو نو تر پـا نـو تـیر شی
نو میـد دې نـه شی د خدا ی لـه فضله
گوند ې دفضل په ډکـه و یر شـــی
* * *
گند گـی چه پر ته و ی گونګټ پر ې گرځی
چه نه و ی پا خـی ځنـې و رځـی
ددنیـا خلـك اکثـر گـونګـټ د ی
څو چه ښـه مو می ور باند ې غور ځی
* * *
گوره پر ې غو ږ کړ ه شپـېلۍ څه وایی
بېلتـو ن پر ې ورغی هر گوره ښه وایی
سینـه یـې گو ره څو ځا یـه سو ې د ه
زار د فـرا ق کا نورڅه هیڅ نـه وا یی
* * *
گید ړ بـې ز ړه د ی و هم وسواس لری
مزر ی زړه و ر دی کلـه هراس لری
هغه مز ری نه د ی هغـه گید ړ د ی
په کار و بار کښې چه زړه کوزپاس لری

---

(۱) په اوله قلمی نسخه (گلرنګ پرونی) دی.

لبا ن دې نــه د ی آبحیـا ت د ی
ابحیـا ت دی صفـو ت صفـا ت د ی
چا چه نو شلـی هغـه یو څاځکـــي
په هغه څاځکـی دیــدن د ذا ت د ی
* * *
لوګـی چه و تو رې ها له بـه تیر شــی
په ښبکر هنر وکړه چا له زهګیر (۱)شی
تر درس چه ورځـی علـم حا صل کا
تر سرچـه تـېر شی سـړ ی امیرشی
* * *
لکه په و نو باندې خزا ن را شــی
پیر ی هم هسې په خپل اوان را شـی
خزان دو نــو خو بـی تا را ج کـــا
پیری هم هسې په زیا ن دځان راشی
* * *
لـکه کـتهو ه پــه لمبـــو ایشـی
زمـا د نــنه پــه ز ړه هـغه شــی
له چا بــه څـــه لر ه ماڼه په زړه لرم
خو ږ یم د خپـلو سترګـو پـه غشې
* * *
لـکـه ګتهـنه دمـا ل هنـر لـــر ی
هسـې خو ږ نــه دما ل هـنر لـر ی
لکـه باز نه دمـا ل هنـــر لـــر ی
هسې سا تنــه دمـا ل هنر لــــر ی
* * *
لو یی پـه خدا ی ښنا یی یو هسې لوی‌به‌وی
په ورځ دحشر چـه ګفتـګو ی بـه وی
دتو رو پـا ټـو په شست وشوی به‌وی
غـم د ځـان نه کا امتی جوی بـه وی

---

(۱) دلبندې دنیو لو ځای (ظفر اللغات ) .

له طبيبا نو عا لم دوا غوا ړی
له در و پشا نو خلك دعا غوا ړ ی
خدا يه دهيچا محتا ج يې مه کړه
هر څو ك له نوروخوشحال له‌تا غواړی
* * *

له شېر ه شېر زېږی له ګرګه ګرګ‌زېږی
له بازه بازوی له چرګه چرګ زېږ ی
هر څو ك خپل اصل وته ر جو ع کا
خطا که نه وی له بزرګه بزرګ زېږی
* * *

ليلا مجنو ن ته وې په بيا با ن ښېښی
ولې له خلکه ، يې هسې ګو ښې
وې يې ما څه پو ښتې مګر تا نه‌زده
تايم له خلکه ګو ښی پر يښې
* * *

مې کړه قا بل شه چه څو ك قابل شی
دبخت و ستور يو ته مقا بل شی
قابل چه نه و ی د و لت که بيا مو می
بقايې نه وی حا ل يې څه بل شی
* * *

مر دا ن هغه دی چه همت نا ك و ی
په هره چار کې چست وچا لا ك وی
که غم پر ې راشی پر وا د غم نه کا
خوا ږه له هر چا په زيست په ژوا ك‌وی
* * *

مر دا ن هغه د ی چه همت نا ك وی
دننګ په کار کښې چست‌وچالاك وی

دد ين په کار کښې که آراسته وی
په‌زړه هم پاك وی په خوله هم پاك وی

مرد بـه غیور و ی مرد به صبور وی
هم به پـه عفو په کرم مشهور و ی
نا مرد هغـه د ی پـــه حقیقت کښې
چـه دا خـو تو کـه یې له دله دور وی
* * *
مزر ی پـه خپلـه ما تـه نظر لـــر ی
لـــه بلـه دده کـله حـــذ ر لـــری
ګیدړ چـه ښکار کا دشلانړو مـلا ښړو
خو ر ی یې له تر ســه نـظر لړ برلری
* * *
مز ری چه ړ پر ګو رې ترس دېډېر کم‌شی
چه در تـه غړ مبا و هی‌په ځان دې‌غم‌شی
سړ و وهلـی اژ دړ خو ړ ل نـــه کـا
چه لمر یـې تود کـا ها لـه ستم شـــی
* * *
مزر ی خپـل ږ غ لری ګید ړ خپل ږغ‌لری
هر یو دخپلې چـا رې دغـد غ لـــر ی
ګدا ی د خپلـې جـو نـګړ ې غـم کـــا
باد شاه دملك د حشم بیرغ (۱) لـر ی
* * *
معشو قه کو مه چه طر ښـا که و ی
ناز و نیا ز لـر ی پـه حسن پاکـه و ی
نـه درو غجنـه نه قـهر جنـه و ی
نه بد خورا که نه بد پـو ښاکـه و ی
* * *
مغو ل پښتو ن سره په پیچ و تاب د ی
چه‌پښتانه ګـو رم خا نـه خرا ب د ی
ښه ښه ځوانا ن شتـه په پښتا نه کښې
چه‌لاس یـې نه رسی خانه خـرا ب دی

---

(۱) په اوله قلمی نسخه‌کښې (یرغ) راغلی دی‌یعنی‌مصلحت اواتفاق‌دی .

مقبول د خلکو په غم کښې ډوب وی
مقبول چه نه وی هرګوره خوب وی
چه نېست یې ځان کړ له عیبه خلاص شول
چه ځان یې هست کړ هغه معیوب وی

* * *

مګر چه کښل کا داکا تبان دی
وا ړه خوشخط کښې سره یکسان دی
ځینې مشکښې کښې (۱) ځینې کونجکې
دچا تر درو، حرفونه ګران دی

* * *

ملا په علم په کتاب نازېږی
حاجی د حج په ثواب نازېږی
غازی دتورې په باب نازېږی
خوشحال په فضل دوهاب نازېږی

* * *

ملك دکلی چه دچا سپك وړی
دکلی مال به یې ښځې هلك وړی
تل چه په کور کښې مېړ من نابوده وی
پی یې پیشو ختی غله یې مرك وړی

* * *

ملوك چه عدل، عقل، کرم لری
اندوه یې کم وی له چاخه غم لری
چه دایې نه وی د ځان غلیم دی
ځان به په خپله عالم ته ګرم لری

* * *

منت د خدای ښه دی نه دوګړی
دختکی نه د پیو ه زړی
چه مست سنډه ګان دی بار دچانه وړی
غوایه تر بار لاندې پرېږده چه څړی

---

(۱) لیکی .

موړ هم هغه ګڼه چه زړه یې موړ وی
سترګې مړې لری که زوړ که ووړوی
که ډېر دولت لری چه تمه خواست کا
دګدا یی وکار ته جوړوی
* * *
مومن هغه دی چه جوړ یقین لری
وېره له خدا یه اندوه دد ین لری
بار د هر چا وړی خپل بار په چا نه ږدی
ښه یې کردار وی ښه همنشین لری
* * *
مومن هغه دی چه ترس دخدای لری
چه ترس دخدای لری زړه دې په ځای لری
مومن دې غم نه کا د ګنا هو نو
چه ګنا هو نه دشیطا ن په رای لری
* * *
مو نږه توتیا ن یو په بڼ راغلی
ګلونه ګور و ښکلی ښا غلی
خو مو قسمت وی پکښې به او سو
بیا به ترې درو مو زړونه دا غلی
* * *
مو نږ ه مز ری یو په ښکار را غلی
دښکار غمو نو زړو نه دا غلی
چه بخت یې بدوی ښکاریې هم بدوی
ښه ښه ښکا رو نه کا په بخت ښاغلی
* * *
مهینه تو ره خو رنګ تما م وړی
خینې یې ګېډه یا یو اندا م وړی
خینې مخ وا ړوی نوغی (۱) ونه کا
دهغو تو رو نا حق خو ك نام وړی

---

(۱) نوغی = داغ ، اثر ، علامه (ظفراللغات) .

مېړه دې توره ، وز کړه ، وفا لري
ښځه دې حسن ، شرم ، حيالري
نورې پو ښتنې و رځنې مه کړه
هرڅه به ښه لري هغه چه دا لري
• • •
مېړه هغه دی چه صبر ناك وي
دور اند يشي لري په لمن پاك وي
چه دا يې نه وي په سر يې خاو ري
ګنده يې عمر ګنده يې ژوا ك وي
• • •
مينه په هر چا چه د خه د پا ره شي
بقا يې نه وي زر زر نا كا ره شي
چه حقا نې وي مقصود هيڅ نه لري
دهغې مينې به تل ننداره شي
• • •
مينه چه تېره د سړ ي تر هډه شي
درو مي د ننه په ما غزه کښېګډه شي
دهغې مينې زوال هر ګز نه وي
دهډ دپا سه په ساعت نړ ه شي
• • •
ناستې و لا ړ ې دې په خر خښې د ی
ډېر ې فتنې دې په سترګو کښې د ی
په زړه مې وا ړه لکه ملهم لګي
دتا نا سا زې ترساز و ښې د ی
• • •
ناکس دې و خو ر ی دسترګو کسی
دا نا دار و ګر ی کسی
لا ل و ګو هر پر پرې دی له خپله لاسه
په لاس مشکنی کو نجکې نیسی

---

(۱) نوغی = داغ ، اثر، (ظفر اللغات) .

ناکس هغه دی چه اصل بد لری
دنیك خوا ها نو نصیحت ز د لری
دحق دارا نو د حق پروا نه کا
آدم لیده شی خصلت د ، ددلری
* * *
نصرت هو ری وی هو ری چه شخوند وی
دولت هو ری وی چه کار پسندوی
په وخت دپینی (۱) لستونی ډیر غری
پهوخت دتو ری بنکاره مړ وند وی
* * *
نظر که وکړی او وه اسما نه دی
اووه اسما نه دی اووه جها نه دی
اسرار یی هیڅ مو ند لی نه دی
خبری ډیری په خوشو شا نه دی
* * *
نفس و شیطا ن سره یو تن و جود دی
پهدوه صورته سره نمود دی
دوا ړه مړ دو د دی په شریعت کښی
چه د مر دود منی هغه مر دو د دی
* * *
نن ډیر نیکخواه وی سبا بد خواه شی
نن ډیر ګمرا ه وی سبا په راه شی
زړونه په حکم د کر د ګا ر دی
قضا نه ګوری چه څو ك اګا ه شی

---

(۱) پینه ، دخوراك لرګینه کاسه ده ، مطلب دادی چه دکاسی اوخوراك په وخت کښی ډیر خلك لستونی رانغاړی. او بنایی چه دغه کلمه پینده وی .

نو کر ژو ند ی نه د ی کاریـــې دمړه و ی
خپل ز ړه یې نه وی دصا حب‌په‌زړه‌وی
چه و رتـــه حکم دخپـــل صا حـــب وی
که هر خـــو ګرا ن و ی هم یې‌په‌وړه وی
* * *

نه به په‌بېرتـــه زما ځوانـــی راشـــی
نه به بیـــا دور ، شاه جهـا نـــی را شی
یو زوی مـــې نشتـــه دېر ش د ی‌که شودی
چه به پـــه ده کښېې زما خانی را شـــی
* * *

نه به زما غـــوند ې بـــل ننګیا لی را شی
نه به‌زماغونـــدې بل جنګیا لی را شـــی
ختهـــك لا پر پړ ده په درسنت افغان‌کښې
عجب که هسی فرهنګیا لی را شـــــی
* * *

واده خو ك مه کا ښځ ه دو نـــــه غم دی
دده‌غـمو نـــه لـــه عـمره ســـم د ی
ســـخ دهـــغو دی چـــــه لونـــهـا ن د ی
پـــه غـــم نیـــو لـــی د یـــو ه د م د ی
* * *

واده دې هر هر پسر لی هر کال و ی
ښـــځه دې ځوانه اس د ې نیم زال وی
دا دواړه تـــو کـــــه ددو لتـــمنـــو د ی
ځینې دې تښتی خو ك‌چه کنګال (۱)وی
* * *

واړه غلط دی چه خو ك خپل ځان سپنا یی
کبـــر لو یـــی کا پر پشا ن‌پر‌پشان وایی
که هر خو لو ی شی سړ ی بیا خاورې دی
خوشحاله کبر لویـــی په خدای ښا یـــی

---

(۱) کنګال = مفلس (ظفر اللغات) .

وا ړه مستا ن د ی چه مخ زیبـا لـر ی
دخپلـو تو رو سترګو صهبا لر ی
باور یې هېچېرې په وعده نه بو یـه
په خو لـه به تـل سبا سبا لـر ی
* * *
وایی په ز ړه دې غمو نه څو مره د ی
څو دا نا سا ز ې راسر ه هو مره د ی
هرچـه مین شـی ز مـا په پو هـه
دقهر و لـی مزر ی تـر ډو مـر ه د ی
* * *
وایی دخو نی شا هتیـر د ې و ل لری
کوږ دی ، تنکی دی، لنډدی، خلل لری
زه هم پـو هېـږ م د ز لـز لـې د ه
تکیـه دا خو نـه د عز و جل لـر ی
* * *
وخت به دژمی و ی که وخت دا و ړ ی
چه به را وا غوند ی دمرګ خرخوړی
ما بـه په تو رو خا ور کښې وا چو ی
پکښې به پر ېو ځـم زه بو ړی بو ړی
* * *
ورتـه حیرا ن شـم که دانـا یـې د ی
دجنسه ،جنسه چـه اشنا یـې د ی
هر څو ك خپل اصل سره و صلت لری
لـه بلـه اصلـه یـې جـدا یـې دی
* * *
ونـه پـه ولـې تـا زه و لا ړه و ی
چه ویـخ یې نه وی خوبی یې ولاړه وی
اوبه ، باد ، خاو ر ې ، ور لـر ه بو یـه
ویـخ یې قایم شی چه دا څـه وا ړه وی

ويل له باغــه شی لــه راغه څه وایی
صفــت دګل شی اغزی څوك څه ستایی
رانجه زیب نه کــا په ړو ندو سترګو
که‌ناز کا ناز یـــې په بدرنګ نه ښایی
* * *
هاتی چــه و مری بوی یــې پیــدا شی
په لاری تلو نی چه څو ك پری را شــــی
پوزه نیو لــې ځــنــې تــېــر یــږی
خلا صی یــې نه وی یوه بــلا شــی
* * *
هر چــه د تورو زلفــو مېر منــې دی
په تــو رو ، ږ یرو بانــد ې مینــې دی
دسپینو ږ یرو بــلا پــه دو یــو شــــه
ولــې لـــه وا ړ و پــه ز ړه غمجنې دی
* * *
هر څو ك په خپله وعده قضا و ژ نــی
ومری فنــا شی، نه‌یې بیا بیا و ژ نــی
څوڅو مرګــو نــه را باندې را غلـــه
دیار بېلتــو ن مــی تر مرګ پخوا وژ نی
* * *
هریو تر بله بهتر ،ځان خپــل ګڼی
نشتــه چه ځــا ن به کهتر تر بل ګڼـی
په خپل خپــل عقــل هرڅو ك غر ه وی
په هره چار کښې خپــل ځان‌عاقل ګڼی
* * *
هغه استــاد ګڼه چه در تــه څــه ښیی
کشر هم مشر وی چه در تــه‌ښه ښیی
په سپینــه ږیر ه به یــې منــت لر م
کــه ووړ کی را شــی را ته څه وښیی

هغه چه تو رې دبرى په وخت و هــى
هغه يــې وا ړه د بل په بخــنت و هـــى
سپا هيا ن د تــمــې د خپل مقصــودوى
دتنګسې تو رې ځښتن دتخت و هــى
* * *
هغــه چه شر م د خا صو و عا مو د ى
كه زو يــه و رو ړــه دنيك فرجا مو دى
دمړ و پــه رنګك شه په مځكه ړنګك‌شه
چه بد نا م كړو نى د خــو نيكنا مــو دى
* * *
هغــه چه عهــد قو ل پيــما ن لـــرى
پرې مې سلا م د ى د ين وايما ن لرى
خو ك چه ددــن و ايما ن سا ما ن لرى
ارمان يــې كوم دى چه به ارما ن لر ى
* * *
هغه چه قــو ل قــرار متيـــن لــر ى
دو لت ددين ددنيــا قــر يــن لــــر ى
چه دا يــې نه وى نور څه يې مه‌ګوره
كه ښې ښې چارې ددنيا دديــن لــــر ى
* * *
هغه چه كبــر خو د پــر ستــى لــر ى
خداى دې هو مر ه با لا پستــى لر ى
كا مل بــه هيڅبر ې بــل راى دزړه‌نه‌كا
اشيــا د خداى پــه هستى هستى‌لرى
* * *
هغه چه مخ لر ى خو ږ ې وريښې(۱)واخلى
په وېش‌چه سر شى بخرې‌ښې‌ښې‌واخلى
هغه چه نه كر ى په و ږ يــو ګرځــــى
هغه چه وكر ى هغــه رشــې و ا خلــې

---

(۱) وريښه = حلوا .

هغه محبوب ښې ورا ړه فا يقې د ی

چه‌په پاکۍ ، په عفت شا يقې د ی

څه شو که مچ په شکر و وګر ځی

شکرې کله د مچ لا يقې د ی

* * *

همت چه لو ی لر ی که ما ل يې کم وی

ښاد وی ،آزاد وی، شاه عا لم و ی

چه دو ن همت و ی خسيس ، ممسك وی

که‌مال يې ډېر دی ،نصيب يې غم وی

* * *

همېش به هېڅو ك په دنيا نه وی

په وار په وار به ورځنې تله و ی

مرغو نه راشی په با غ کښې کښېني

بيا يې دبا غه نه الو تـه و ی

* * *

هند کی چه هېڅ دی ، په بهادرو می

خواری له خپله شا متـه مـو مـی

يويې ، وفا نشتـه ، بل يې حيا نشته

بل يې خوا ړه ځی دخواست‌ترکومی

* * *

هنر په دو ه ور ځې ښکار ه دکس‌شی

عيب يې ورو ، ورو ښکار ه‌پس،پس‌شی

يو شا ن مر غی نه شی د سړ ی له ځالې

ځينی با زو نه ،کار ګا ن‌ګرګس شی

* * *

هوښيار به چست و چا لاك بېدار و ی

په هر ه چار به ز ر خبر دار وی

ډېربه عمل لری ، لږ ې خبر ې

په هر زما ن به يې نظر په کار و ی

هوښیار به نه وی چــه احمق ته‌پندوایی
خو ږ ې خبر ې خرونو ته نــه ښا یــې
خوا ږه د خرو نــه د ی ، د آدم زاد دی
چه یې خو راك نه زده څه یې مزه‌ستایې
* * *
هوښیار به نه و ی چه نا دا ن ته پند وایی
خره تــه خبره دقنــد دخونــد وا یی
په هر هر تو کــی کښیــد ه نه کــېږی
ولــې به هر چاتــه پند خر د مند وایی
* * *
هوښیار به هر چــېر ې په ز ږه دارن‌وی
په جنگ‌چه ورشــی نوربــه تورزن و ی
نا دا ن بــه تورو ، و تــــه هو س کـا
چه تو رې وبرېښی نور به‌ریخن(۱)وی
* * *
هوښیار به هر چېر ې‌محتا ج دپند وی
پند به پــه ده باند ې بهترتر قند وی
نادان بــه هېڅېر ې دپند پر وانه کـــا
پند به په ده باندې دحنظل خوندو ی
* * *
هوښیار به هر کلــه زمانه ســاز وی
په دا نــا یــی به یــې دکــار آغا ز و ی
نا دا ن به هېڅېر ې په دا خبر نه وی
په هر یو کار به یــې بــې‌ځایــه رازو ی
* * *
هوښیار به هر کلــه فهم پــه د م لری
نظر به عینې په خپل قـــد م لـــر ی
دم غنیــمت گــڼه په هېڅ مغرور مه شه
کــه دلگــیر کښېنې اسمان څه غم‌لری

(۱) ریخ = نرم غوښایی .

هوښيار به هيچېږي بې پنده نه وی
کار او ګفتار به يې بې خونده نه وی
چه عقل نه لری بد نفس بې شرم وی
فکريي هيچېږي بې شخوند نه وی
* * *
هوښيار به هيڅکله له ځانه خوش نه‌وی
په خپل دانش به فضو لسرکش‌نه وی
چه ډېر ينه وی چه تجربې لری
په کار وبار به دعغوی اش (۱) نه‌وی
* * *
هوښيار غليم به په خوله جنګ غواړی
ډېر به تر جنګه په اشتی ویاړی
عمر خو يو دی چه په غم دړومی
داهسې عمر دې و با و نغاړی
* * *
يار به ديار په ياری و ياړی
په هره چار به يې ښېګړه غواړی
که يار يې خاندی دی به هم خاندی
که ياريې ژاړی دی به هم ژاړی
* * *
ياری په مهر په محبت شی
پکښې له پسه هنر حکمت شی
چه نه يې داوی نه يې هغه وی
اخر په دواړه لوريه زحمت شی
* * *
يا ښه ځوانان دی يا ښه اسپان‌دی
چه ورته ګران و مشکل اسان شی
دچا چه نه وی دا دواړه تو که
عيب يې مه کړه که هر اسان دی

(۱) تعجب ، حيرانی .

یاغی با زو نه یو یو باز دار نیسی
څه چرګې نه دی چه یې هر خوار نیسی

دهرې چارې اسباب پیدا کړه
افسون دې زده کا هغه چه مار نیسی

* * *

یو چه مین شی د بل پرې رخه وی
چه سره بېل شی باندې یې سخه وی

ګل که ښه نه وی بلبل به څه کا وه
مینه په هر څه د څه له مخه وی

* * *

یو څه خار ښ دی چه هو یدا شی
په څو څو رنګه سره شیدا شی

عیب تر شا کا په لېونتوب کښی
د دوو په منځ کښې دریم پیدا شی

* * *

یو دی چه هر کله حلوا شیر ینه خوری
بل دی چه تل تل او ګره جوینه خوری

په مرګ به دوا ړه سره یو رنګ مری
دګور چینجی به یې غوښې په مینه خوری

* * *

یو مست د میو څو پیمانې لری
بل د جایفلو یو څو دانې لری

خبر په حال د مستانو نه دی
دخپلې چارې سل افسانې لری

# (ې)

احمق در و ښیم کـه احمـق ګو ر ي
احمـق ړانده ه د ی په‌سترګو تو ر ي
تو رو تـه سپین وا یی سپین و تـه تور وایی
پـه غو ږو نـه اوري خبر ي نو ر ي
* * *

ادب چه نه وي په سپین پـه تورکښې
عز ت به نه وی په هغـــه کور کښـې
دو لت به درو مـی لـه هغه خلکـــه
چه سره تل و ی په شرو شـو ر کښې
* * *

اور کـه بخر ی وی ځنې به وېـر ه‌کړې
غلیم که ځری(۱)وی ځنې به وېره کړ ي
نور نور رنـځو نه به وتا تـه څه وا یم
ښځې‌که خر ي وې ځنې به وېره کـړ ي
* * *

اوښ مـې تیار د ی کـجاو ه بانـد ې
یاران‌مـــې و لا ړل وا ړه دوړانـــد ې
دا یم روا ن یم و رپسې د رو مـــم
جر س فر یاد کا خـبر را کـا نـد ې
* * *

اې چه بـې مثل په کړ ه او و ړه یـې
ګل رنـګه رو غه د خدا ی په کړه یې
دا هسې و لـې د ز ړه په و ړه یې
پـه هېـچا نه یې خو په خپل‌زړه‌یې

---

(۱) ځری، دټوپك دشیش لګو لو کوچنی ښښه جاسوس .

اې چــه پر ې و ما تــه ستــا يـــــی
کــه يار مې و وينې بــيا به ووا يــې
هرچا چــه وليد ه باند ې بلبل شـــــو
مخ دې کـــه ګل د ی ددلــر بــا يــې
* * *
اې چه پــه رو کښې ګزار ته ساز يــې
ستر ګــې دې لکې غو رڼه ا واز يـــې
غا ری غرخه د ی در با ندې در غـــی
په تخر ګ يــې و لــه که تير انداز يې
* * *
ای چــه خبر ې کړ ې خو رږې شيبر ينې
ولــې دې وو تې په عمل کښې سپينې
ګفتار سور ګــل د ی دا نار دو نــې
کردار انار دی کـــه ته يــې وينــې
* * *
ای چه له مانــه علم مکتــب غــوا ړ ې
دود ، د عجم غواړې دود، دعرب غواړې
روغ يې که روغ نه يې زاته ووايـــه
له عا شق انوچه تــه مذهــب غـــوا ړ ی
* * *
اې چه يار ی کړ ې په خو خو غـــا ړې
په تلــه ور کړه(۱) په خروار غـــواړې
يار دې دخپلــه لا ســه پــه ګــور کړ
بيا يې په های ، های‌په ورت، ورتړاړې
* * *
اې دچشما نو پـــه غمز ه الــما ســې
دا خــه هنر د ی لــه عا شــق ستــاسې
ترسر تر پا يـــه را تـــه ووا يـــه
تــرې د ې و يستلی يم لا مې و با سې

---

(۱) دريمه قلمی نسخه کښې (ورکړې) دی.

با ران چه وشی په پتهی باندې
ها له تازه شی عمل(۱) پرې کاندې
زړه مې پتهی دی باران دی مهر
پرې تازه کېږم ځوراته خاندې
* * *
باغ ونې او چې لری هم تری
هم یې کهترې شته هم یې مهترې
په سایه ګورې په میوه پورې
ته هغه ونې ګڼه بهترې
* * *
باورکه وکړې په جز او کل کښې
مردان به تل وی په توکل کښې
دا ډېرې غاړې نغمې صوتونه
نشته په باز کښې ، دی په بلبل کښې
* * *
بد خواه دې خوار اوسه ، ته ور ته غټ اوسې
خپل نیت دې زغره ته پکښې پټ اوسې
څو چه بنا دی دی څو چه غمو نه دی
و دواړو تو کوته پهٔمخ په ځټ اوسې
* * *
بزرګی په تابنا یی که ته ستار یې
ستار که نه یې کله بزرګوارې
چه پرې حاجت دمحتاج پوره نهٔشی
که مال دې ډېردی کله مالدار یې
* * *
بلا بلا وایې بلا هم ته یې
خپل بنه هم یاد کړه که بلا نه یې
توره دژبې توره داوسپنې
څه غوڅول کا خبر لا نه یې

---

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې دعمل په ځای (خوبی) دی .

بلــه به نه وی پــه حــق شنا س کښېــي
تل به په حمدوی تل په سپا س کښېي
چه یــې جار با سی ، هورې جار و ځی
ز ړو نــه تسخیر دی دخدای‌په لاس‌کښېي
* * *
بــې قــد ره نـــه دی درا ز خبــر ې
درا ز خبـــر ې دی‌مـــر غلـــر ې
ځای یــې دننــه د ز ړه صنــدو ق د ی
ور بــه یــې نه کړ ې همد م ته لېــر ې
* * *
پاکا ن بــه د رو مــی په پاکې لا ر ې
نا پاك به کاندې نا پاکې چـــا ر ې
چه سترگــې نه لر ی و رتــه به څه‌ښیم
د هر هر با غ د ی مــېو ې تیــا ر ې
* * *
پاکی چــه را شی په هغـــه کور کښېــي
بــلا یــې وسېزی ، وره پــه او ر کښېي
یوسف چه پا ك ؤ څکــه باد شـا ه شــو
څــه شو کــه بند ؤ نا حق په تورکښېي
* * *
پرینې (۱)که ښــه د ی په کار و بار کښېي
نه دېــر فکرو نه ،زړغی (۲) په‌کار کښېي
زړغی نامرد کا لــه کا ره پا تــې شــی
مرد تو ل اختیاروی په زیست‌روزگار کښېي

(۱) پرینې = بندوبس . سرشته ، انتظام .
(۲) زړغی = تردد ، هغه دغه ، بی‌زړه توب .په دریمه قلمی نسخــه کښې (زړغه) دی خو دواړه شکلونه یوه معنی لری، یعنی زړه‌وهنه‌اوتردد.

پند پند شکر ي هسې شیر ینې
په هر سپې نغر ي په مخ‌نسرینې
مین ستا هسې په غم کشي کښې
تلې خبر ي‌ستا شکر ینې
* * *

په استخفا ف د باد شاه دولت بایلې
په استخفا ف د ملا جنت با یلې
په استخفا ف د چهار یارا نو
هم مؤ دت با یلې‌هم مروت با یلې
* * *

په‌تن سپمینه یې په رنګ رنګینه‌یې
په لب شرینه یې په مومشکینه یې
زه دې مجنو ن یم که ته لیلا یې
زه دې فر هاد یم که ته شرینه‌یې
* * *

په تن هډو نه ر ګ و ریشه یې
په دا که ګو رې یوه پشه یې
خوی د ددا نو د لیوا نو پر پړ ده
که ته سړ ی یې په اندیشه یې
* * *

په جنګ کښې مټ ک ړه‌تربل دو ړاند ي
که و مړ ي و مړ ي رحمت در با ند ي
ژوند ی که پا تې شو ي ځان دې‌عزیزکړ
نور به خبر ي در ځنې کاند ي
* * *

په چا چه نه پسند ي ګراني دشواري
په تا به نه درځي دشوا رې چا ر ي

په خدا ړو وا ړ ه جزا سزا لر ی
تر پښو که لاند ي کړي مېږی په لارې

په ځا ن خبر شــه چه چر تــه ځای لري
چه تخت نشین یې څه هوی وهای لــري
ځای دې په پور تــه تــر ملــکو ت د ی
چه نا سو تی شو ې خوی د ګـدا ی لري
* * *

په خو د ځان په ښه وه بیدار یـــې
وښته دې کو ږ شی هم پر ې ازار یـــې
فکر دګور د خواریـو نـــه کـــړ ې
بنــد بند بــه پرو ت و ې ولی قرار یې
* * *

په خو وای وای لر ې چـــه لږ بیمارشې
پروا د ې نه وی چه چا ق تیـــا ر شـــی
هیڅ یې نا بود یې چه ښه مـې ولید ې
غفلــت خوار کړ ی که خبــر دا ر شـــی
* * *

په خپل مقصود پسې په څــه مجنو ن یې
په خپل مطلب پسې ږ وځــه مفتو ن یې
په خو خوشحال‌شې چه په کام‌کامیاب‌شې
دکا م په نه موند ل هر دم محزو ن‌یې
* * *

په دا دنیـا کښې ښې خو ږ ې مینـــې
په در نګک تر خې شی‌که ته یې وینـــې
نور څــه یې مه ګنه ږواړه مقــصود د ی
تر خو له که و باسې تر خــې شیرینې
* * *

په درسته و رځ چــه تلا تو ب (۱) کړ ې
ددنیا چا رې پــه څــه آشوب کــړ ې
خوشحاله پا څه دا سړ ی تو ب کړ ې؟
چه چرګ به وینې وی ته به‌لاخوب‌کړې

---

(۱) ناقراری ـ ناآرامی (ظفراللغات) .

په دوا ړو زلفو کـه عنبر بیزه یـــې
په دوا ړو شونډو کـــه شکر ریزه یې
داخــه لانورې خو بې دې ډېرې د ی
بابا دې و مر ه بلا سر تیــزه یـــې
* * *
په رنګک پـــه حسن په څو نا در ه یـــې
ښېوه غمز ې لر ې څو جلو ه ګر ه یې
له خپلــه یار ه څـــو زو ره و ره یـې
څو چـــه پو خـلا شې بیا مرۍ ره یې
* * *
په رنګک په حسن تاز ه بلوڅــه یـــې
په تـن کښې سپینه تر تا زه پو څـه یې
ترسر ت رپا یــه کمـی د ې نشتـــــه
پـــه ښو خبــر و څــه خبر لو څه یې
* * *
په رنګک په شکل ښا یستــه میــور ې
پــه زړه سنګینـــه نا تر سه کــو ر ې
یا را ن ډېر خوښ کړې بیایې ډېرخوار کړې
دا رو د ز ړ و نــو ، د ز ړو نو څوری
* * *
په رنګک رنګینه یـې په مخ نسرینه یـې
په لب شیر ینــه یې په تن سېمینه یې
درسته ګــلزار یـې تر سر تر پا یـــه
عیب دې دا دی په ز ړه سنـګینه یـې
* * *
په رنــګک که حوره ده پرې ګرفتارمه شې
چــه خو ی یې بد وی د ښځې یارمه شې

خوشحال ته ګوره چه یو څه یـار لــر ی
له بده خو یـه یـې ته خبر دارمه شې

په روم په شام شـی دلیلـې خبـر ې
په هند په سند شی دمجنو ن سند رې
عشق مـې په مثل نا فـه دمشک شو
چه بوی یې خور شو پـه نـړدې لـر ې
* * *
په زړه مـې هو مره نه دی انبا ر ې
چـه یـې قلم کا پـه کاغـذ نـګارې
یـا بیا نیـبر ی زمـا پـه ژ بـه
یا یـې قا صد کا در تـه تکـرا ر ی
* * *
په زلفـو کفـر په مخ اسـلا م لـرې
دستر ګـو سحر په زړ و نـوعام لرې
خیال به ته نه کړ ې خیال به نورخوک کا
چه نن څه ځان ګڼی هغه غـلام لـر ې
* * *
په غم دنورو و غـم تـه ساز مه شې
سپک و عا لـم ته په خپل اواز مـه شې
سړ ی په تمـه دبـل بنـد ه شـی
دعا بـه دا کړ م اخته پـه آز مه شې
* * *
په غرو نو مه ځـه تر غرو نو پر ې مه وځې
تر غرونوپرې وځې تر زړو نوپری‌مه وځې
زړو نـه خـه واړه بـر ابـرنـه دی
درو مـه تر ز ړونودمړونوپرې‌مه وځې
* * *
په قد د سبر ترو نـې بو کـه یـې
په رنـګک په اصل په خو ی ملوکه یې
کمی دې نشته پـه شش وپنج‌کښې(۱)
په چار پـه هر څه د ز ړګی څو کـه‌یې

---

(۱) په اوله قلمی نسخه کښی دغه بیت داسی دی :
کمی دې نشته دهرې چار ې ځکه دننه دزړګی څوکه یې

په کوه قاف کښې ، رهبر دوړانــــد ې
که درو مې نه به وی سختی در باند ې

که بې رهبره په سم میـدا ن د رو مـې
ځو خو بـلا شــی پــه تا هړانــــد ې

* * *

په لاس چـه واخلی مر دا ر ې چـا ر ې
نو م شـــی د ښځــې د زنا کــا رې

که نه یــې مر ګ وی ، نه یې طلاق و ی
په مردیـې بنـد شـی د جنـت لا ر ې

* * *

په مار چه وارجوړ کړې،ګوزارپرې‌نه‌کړې
خپل زړه خووپوښته چه زړه داخه کړې

که غو ل تو ب د ی کــه ښا غل توب‌دی
خو دبه پــه ز ړه کښې ننــدار ه وکړ ې

* * *

تر ظل کښې مه نــی د هغــې و نـــې
چه یــې نه ستړه نه پا ړې وینــی (۱)

نه یوه و نه با غـــی پـــه غو لـــې
نــه ډېـر ې و نــې پلو سې غـنــې

* * *

تر مشکو ښــې د ی دو طن خاو ر ې
تو دې او بـــــه د ی دو طـن وا و ر ې

ما چـه دا هسـې و طن تـه شا کـړ ه
ز ړه کړ م کــه نور چا؟ ګما ن‌په‌چاورې

* * *

تر غرو نو پ رې وځې تر زړو نو پرې‌مه‌وځې
دسرومزر یو په ډ کــه کښی مه و ځـې

چه خوك یې نه پسند ی هرچا ته بدو ی
په‌هغو هسی چا رو پسې مـــه و ځـې

---

(۱) دپښتو ټولنې په دریمه نسخه کښې (ونی) راغلی دی .

تږی چه سخت وی ساعت پرې باندې
خو ږې او به و رشی سرې ورباندې
وخت دا ها ړ وی تـه را تـه و وا یه
چه خو خو ښــی به حاصله کـاندې
* * *
تعلیم دزاغ و زغــن که ډیر وکـړې
ښکار به پر ې کله د باز په شېړوکړې
دتر خی اوسپنــې تـو ره کړ ه ساز ه
غزا به کله پـه هغه شمشیر و کــړ ې
* * *
تل خا مو شی کړ ه چه تل بیـغم و ې
تمـه له چا مــه کړ ه چه بــې ترحم وې
خوښ په هنر او سه خو ښی په مال‌مه‌کړه
هسی کا رو نــه کړ ه چه بې ند م وې
* * *
تور غرو نه سپین‌کړې په سپینــې‌واور ې
په سبزه شنــې کړې دا تو رې خاو رې
رنګ رنګ ګــلو نه دچمن وا کـړ ې
باده ! دا تــه یې چه داخـه را و ر ې
* * *
تورې زلفینــې پــه مخ شا ن شان لــرې
ور بل په وچولی پر یشان‌پریشان‌لری
دنورو کوډ و حا جـت هیـڅ نشتــه
دستر ګـو سحر جها ن جهــا ن لرې
* * *
تو رې زلفینــې لکـه سنبل لــر ې
خو بــې دحسن زیا تــه ترګـل لــرې
چه دسړ یو پــه ز ړو نــو ګر ځــې
ته هغه هــو مره ز یبا یــې ګـل لــر ې

ته چه باد شـاه دسمن رو يو يـي
غوره دلخوا هـه د سنبل مو يو يـي
تر سر تر پا يـه گـل يـي سنبل يې
بد چه پـه نغو ته د ثوبد خو يو يـي
* * *
ثابت پـه ما کړه گناه مهـر و يـي
لالـه عـذا ر ي عنبر ين مـو يـي
له هغـه پسه تو ره را وا خلـــه
وينـي زما کړه د گـرد ن تـو يـي
* * *
جنت په څه کښې دی په خو شخو یی کښې
دوزخ په څه کښې دی په بد گـو یی کښې
چه نيت يـي لو ی د ی هغـه خدای لوی کا
کمـی يـي نه وی په دالو یی کښـي
* * *
جها ن کمر د ی څخلـي تـه يـي
فعل دي ږ غ دی ږغ کړو نی ته يـي
لکه چه ږغ کـړ ي هغـه بـه وا ور ي
راشـه خبر شـه کـه خبر نه يـي
* * *
چا ته چـه ځا کنـي په څاکښې پريوځي
بـلا چه غوا ړي په بلا بـه کښېوځي
په ځو به رو غ اوسـي دا فکر ښه وکړه
په پړانګ پرهار وکړي بيا ورپسېوځي
* * *
چرگا ن بي وخته بانگو نـه کانـد ي
بيا څه بـلا د ی باند ي هړانـد ي (۱)
زه يـي بي وخته لـه ياره بېـل کړ م
چا ړه يـي سازه شه په ستونی باند ي

(۱)هړاند = لگيا او اخته .

چه اینـــې ته ښکار ه دیـــدار کـړ ې
اینـــه درسته ســره ګلــزار کـړ ې
چه شونډ ې کښېــږ د ې دجا م په مورګو
او بــه په جام کښې ر ب (۱) انارکړې
* * *
چه باد شا ها نو ، ته واخلی تــو ر ې
ددو ی خبر ې شــی په ملك مشهور ې
که بیا باو ر کا پــه باد شا ها نـــو
هغه به مــیند ی په ځا ن کــا بــو ر ې
* * *
چه جنګیا لــی لر ی ښځه په کور کښې
دهغه کس وی ژو ندو ن پـــه اور کښې
ښځــه حلیمه ښــه ده خو شخــو یـــه
بده به تل و ی په شرا و شو ر کښــــې
* * *
چه چا ته ور کړ ې بیا یــې پرې زبادکړې
خپل ور کړ ه واړه (۲)هسې بر بادکړې
که توره ما ته کړ ې په جنګ کښې هیڅ دی
کار دمړا نې چــه چا تــه یـــاد کـړ ې
* * *
چه څو ك دې ښه پو ښتی و رځنې ښه وایې
که دی بــلا و ی و رته لیــمه وا یـــې
چه د ز ړه مهر دې و رځنې مات شـــی
که هر څوښه و ی و رتــه ښه نه وایې

---

(۱) ــ دانارو عرق او لعاب .
(۲) په دریمه قلمی نسخه کښې داسی ده : خپل ورکړه هرګوره واړه بر باد کړ ې .

چه خیال مکیز کړ ي هو مره خو نړیزکړي
چه خپل عا شق سره خیال و مکېزکړي

رانجه چه پو ر ي کړ ي په برندو سترګو
خنجر د جنګ او دفتني تېز کړ ي
* * *

چه را ته غو ته دو رو ځو میان لو ی
په ز ړه د ي څه دی بیا کوم ګومان لري

ناحق دبد و ګوما ن ښه نه د ی
کافر ه نه يې ته هم ایما ن لر ي
* * *

چه را ښکاره شی ددنیا چار ي
فکر مي لا ړ شی په لا ر ي لا ر ي

فکر مي ستړ ی په بېر ته را شی
دوړاند ي را شی لا ر ي حصا ر ي
* * *

چه را ښکاره شو ي يو څه نګا ر ي
څه جفا کار ي که پر ی وا ر ي

خو مي په تا باندي مینه ز يا تېږ ی
ته راته غا ښ چیچي هسي خو نخواري
* * *

چه رو ، يو (۱) نه وی دز ړه د ژبي
تل به نیو لی و ی هغه په تبي

چه بد بو يې لر ی ډېر ه تلخی لر ی
ځکه غو څېږ ی سر د تر بي

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې چه (رویې نه‌وی ) راغلی دی .

چه زر دې غم شی هسې زر دار مه شې
چه زر دېهېڅ نه‌وی‌هغه (۱)پیشکارمه شی
په دا لاس راشه په دا لاس درو مــه
دلن و دېرو په حساب په شمار مه شې
* * *
چه زغلـو نـه دا سو نـو کـانـد ې
نـظر د ې کو ز لـر ی په مځکه باند ې
چه اس پـه لـو ړ و ژو رو ځغلـې
اس یـې پر پـو ځـی تر ځا ن د لاندې
* * *
چه سختې چار ې ،لر ې دو ړا ند ې
په څـه بـې غمه په قهقـه خـانـد ې
هسې پـه ز ړه کښې فکرو نه کـړ ې
چه هو مر ه څو ك دی تر خا و رو لاندې
* * *
چه ښـه مـر دان‌دی د دیـن د لا ر ې
پـتې به نـه و ی ددو یـو چـار ې
او به چه نه و ی روا پـه شـر ع
هغـه اوبـه بـه ګـنـی مـر دا ړ ې
* * *
چه عیب نه لر ی که هسې یار غـوا ړ ې
دا هسـې یا ر به پـه کو م دیارغواړې
بې عیبه یار به چېر ې بیا نه مـو مـې
که ګرځـې ،ګرځې جهان بسیار غواړی
* * *
چه قدر نه لر ی دبـاد شاه دمینـــې
تو یـې به نه کا په خد مت کښې و ینـې
هغه نو کر د ې ښا د یـه نـه کـا
هر څـه بـه با یلـی که ته یـې وینې

---

(۱)په اوله قلمی نسخه کښې (هسی نیستکارمه شې) دی .

چه کار پر ې پـېښ‌شی په‌جز په‌کل کښېږ
مردان به‌تل و ی په تــو کل کښېږ
په باغ کښېږ نور ، نور مر غی مېو ېخوری
بلبل نـــظرلر ی د با غ پـــــه ګل کښېږ
* * *
چه نه ځوانا ن لر ی نه زر نه شــو لې
هغه بـــه و لـــې زور ور بـــو لـــې
که دا یې وا ړه وی چه یې ځوانی نه و ی
ز ړه بو ډ ی بـهــ و چا تــهــ پسو لې
* * *
چه هو مر ه قهــر دګـــو تو مر وړ کړ ې
په دا پـــو هېږ م ز ړ ه به را سو ړ کړ ې
چه اوس دې نور(۱) په لاس نیو لی دی
بـــې بخته نه یـــې که دا کـــبرزوړ کړی
* * *
چه یاد و لی شـــی ګذ شتـــه چا ر ې
فاید ه نشتـــه ، شتـــه څه خو ، بارې
ګوند ې خو ك پند وا خلی ځا ی دحذردی
غلط نور نه درو مـــی په غـــلطـــه لا ر ې
* * *
چه یـــې له چا ګنې، لا نه و لـــی نـــه یې
کا مل د خدا ی په پېژاند ګلی نه یـــې
احوال یـــې و ګـــو ره په توا ریخ کښېـــ
خوشحا له صبـــر کړه به تر علی نه‌یې
* * *
ځار تـــر هـــو ښیـــار شـــم د هو ښیارخبرې
درو غ رښتیـــا یـــې دی واړه شکر ې
دنا دانا نو رښتیـــا څـــه سود لـــر ی
چه یـــې خبر ې د ی لـــه خیـــر ه لرې

(۱) په دوهمه قلمی نسخه کښې (نوی) راغلی دی .

ځواني چه و لاړه ور سره لاړې
ډېرې خوبې که ژاړې ژاړې
بیا به په بېړته ځواني را نه شي
که یې له پیره له طبیبه غواړې
* * *
خو از موده نه شي په کارو بار کښې
په صحبتو نو په ملك په ښکار کښې
هو مره په زو یه په وروړ باور مه کړه
وراني به دره لي په لوی لو ی کار کښې
* * *
خو به په لو یه غاړه دوه(۱) بولي
د غریبی بد لي بولي
زه در پو هیږم زړه دې زخمي دی
در غېږ لو طبیب در بولي
* * *
خوبه دې تل وی دا اوړې(۲) پا وړې
چه دې په زړه وی په خوله یې راوړې
خو یې و نه خورې کله به او ړې
چه بلا غواړې په بلا و ړې
* * *
خو به سو دو نه کو رته را وا ښې
خو به خوا نو نه د خو ږ و خوا ښې
خو به خو بو نه د خو بنی کا ښې
اخر به پر بوځی دربا ندې کا ښې

---

(۱)په چاپی نسخو کښې (دده) راغلی دی .
(۲) چتې او خوشی چار ی .

ځو ځو ښادی د ی پــه دا افـا ق کښي
واړه به بیا مومــي په اتفـا ق کښــي
ځو ځو غمو نــه یـا محنتو نـــــه د ی
یا په دروغ کښې دی یا په نفـاق کښې
* * *

ځو د کــي خونېوي چه مرګی لو ټ کړي
ځو خلکــي یــې سره کو ټکو ټ کړي
مرګ یو تر یــخ جا م دی در ته نیو لی
ځوبه تريخوله نیسیداجام به ګوټ کړی
* * *

ځوك چه یـاد پـړ ی پــه نــژ دي لري
تر هر چـا ښې د ی د یــــار خبر ي
ځیني خبر ي لکــه مشکــنې ـــي د ي
ځیـنــي خبـر ي د ی مـــر غـلر ي
* * *

څه یــې حیرانه سـړ یــه څـه یـــې
خا ور ي یــې باد يې اور يې او بــه يې
که یـو د ي نه و ی پـــه دا څـلورکښي
نور د ژوند یـــو پـــه شما ره نه يې
* * *

خیر پـــه دا کښي د ی چه ډېر ما لدارنه يې
په غــم د عشر دزکو ة ګرفتار نــه یـې
لکه د ي د خل دی هسې دي خرڅ د ی
محتـا ج و چا ته په لــړ بسیار نــه يې
* * *

خپل بند و بست د ی د هر ي چـا ر ي
پا کي مشکو کې شته ، اوبه مرداري

پاکي اوبه بو یه زیست او روزګار لــره
مــر دا ر ي کلـــه دی ســزا وا ر ي

خپل د ي پردی کړ ل پر دی به خپل نه کړي
خصلت دي بد شو خصلت به بل نه کړي
غم دي په بخر ه شو ښا دی به تـل نه کړي
چـه نا قابل يـې ځان به قابل نه کړي
* * *
خپل مال په ترس په صرفه په بيم خوري
دبل غم نه کړ ي که درست که نيم خوري
په کور دکونډ ي رنډ ي يتيم خـو ري
مـلا دا و لـې اور د جحـيم خـو ر ي
* * *
خدايه چـه پا ك دی نا پاك يې مه کړي
دنا پا کا نو سابو ن تو بـه کـړ ي
چه په مـخ رو ښـی و ګور تـه د رو می
کر م د ي ډير د ی ما هم هغـه کـړ ي
* * *
خلك چه غـوا ړی لـو ړ ي ژو ر ي
له مانـه مه غـوا ړه تـه دا خبـر ي
په پـټې سترګـې به ننداري کـړ م
چه را تـه يو د ی نـژ دي هـم لري
* * *
خواره سړ يـه خو هو مره ښـه يـې
چه رو غ په تن يې چه روغ په زړه يې
چه دوا ړ ه توکـه در شـخه نـه و ی
په تخت که کښينې وا يـه ترو(۱) خه يې
* * *
خوشاله بس کړه شان ، شان دي ډير ووي
پيشو دي ډير ووي اوښان دي ډير ووي
سود دي سکوت دی مشغول په دم اوسه
ژبه خوند ی لر ه پريشا ن دي ډير ووي

---

(۱) نو .

خوشحاله ځو به غمو نه نغري
غم به دي کله شي له دله لري
سترګي مي و ختي داسمان ولور ته
که چېري وار را شي ها له خبري
* * *
خوشحا له ځو به فکر تدبير کړي
غم به دي ورك شي دا كار كه ځير كړي
چه نېکي بدي در ته رسيږي
که حوا له يي ته په تقدير کړي
* * *
داحمقانو بې ځايه چاري
څه هو مره نه دی چه ته يې شماري
ښېګړه داده چه رنګ يې مه ګوره
ور سره مه ږده قدم په لاري
* * *
دا د داسمان دی دا د دمځکي
چه دا ځو شپي لری دنيا ته څه يي
ځو دي په پور ته اسمان ته بو تلل
بيا دي يې خاوري کړي کپري
* * *
دا دود ځندن (۱) دی په دا عالم کښې
نادان بي غمه دی دا نا په غم کښې
جهان يو باغ دی نوي خبري
ګل دی غوړيږی په هر هر دم کښې
* * *
دا مخ چه ته لري د بوري لوري
مګر دا مخ لری ښې حوري هوري
يوه به تا غوندي ښا يسته نه وی
چه اوريده شي دا هوري دوري

(۱) پخوانی ـ په دوو همه قلمی نسخه کښې (ځرګند) راغلی دی .
دی .

دبل پــه عیب پــه څو وینبتــه چوی
دځا ن پــه عیب نــظر هیڅ نـــه کو ي
خپل سل ز نا ر ه در تـــه ښکاره نه دی
هندو خویــو لر ی هغه یې هم شلــو ي
* * *
دحسن نا م لر ي عا شــق غــلا م لــري
باده په جام لر ي د ز ړه هرکام لــري
خیال به ته نه کړ ي خیال‌به نورڅوك کا
چه د خو بــی اسبــا ب تــما م لـــر ي
* * *
در ته به ووایـم څو کړ ي پو ښتنــي
کــه د با یلنـــي کـــــهـ د ګټهنې
ځا ی د ي هم دا دی بل ځــا ی د ي‌نه‌دی
که په منــګو لــې ور ي که پـــه لمنـي
* * *
درته به وایم که تــه عا قـــل یــې
نا حــق په نورو چا رو خو شد ل یــې
دولت که نه لري خپل دی پردی دی
که بخت دو لت لري دهرچا خپل یـــې
* * *
درته رښتــیا وا یـم که مې ښه یار یـــې
څه خو ی خصلت لرې څه نا قرار یــې
کله مــې یار یــې کلـــه اغیار یـــې
هم و فا دار یــې هــم جفــا کار یـــې
* * *
درد چه په بل وی خــبر پر ي نــه و ی
چـه دي په ځا ن شــی له در د ه چوي
سود زیا ن د هر چـــا جــدا جــدا د ی
کلــه دبل پــه خورا ك مــو ړ تـــه وي

در ویښی دا ده کــــه تل حــلا ل خو ري
که تل حلال‌خوري بیا دخپل مال خو ري
کښېنې و عــدې کړې مخ دې خدای‌تورکړه
پر دی ما لو نه په داټیټا ل (۱) خور ې

* * *

در ېـغه ســړ یـه ــ چه څـه بــلا یې
واړه د ځـان یـې نـه د بل چـا یـې
تا دخپل پــلا ر سره نېکی و نه کـــړ ه
مقصود دې خپل دی چـــه د بـا بـا یې

* * *

دزر کو ښکــار را خوره بــر ه دمـېږ ې
دسې و او بو یـم د تـو د ې غـېـږ ې
تنګ لنډ مـې مه کړه په دا څـو تو که
بـې نیازه خدا یـه کـه دعا می نغوېږې

* * *

دشیخ شاب سر ه تـــل طر با نـــې
دلبر ې ښـی د ی بـې اد بـــا نـې
هغـه بــه و لــې غم د پیر ی کـــــا
چـه تل تر څنګ لـر ی شکر لبا نې

* * *

دګل تر پا ټیـو نا ز ك انـدا م لــر ې
شېر ین تر قند و د خو لې دشنام‌لرې
خیال به ته نه کړ ې خیا ل به نور څوك‌کا
چه په خپل حسن د ما غ مـدا م لر ې

* * *

دمــخ په رنګ یـې تر ګل ښا غلـــې
دبا غ لا لــــه یـې را تـه را غــلـې
لالـه په خپله سینـــه کښې دا غ لر ی
تـا د ه سینـــه د عـا شـق دا غلې

---

(۱) ټیټا‌ل = مکرو فریب ــ چا پلو سی ،

دم واهه نه شی دا چه خدا یی کړ ي
ځو ك فر عو نی کړ ي ځوك موسا یی کړي

چه دوا ړه تو که د ي یو رنګک پیدانه کړل
کبر یا یی کړ ي که دا نا یی کړي

* * *

دنیا چه هسي وبله بلبېږ د ي
څه چه تر ي اخلی و رباند ي رېږ دي

خبر لا نه یي په دا خبر ه
نا مرد ه وا و ره چه کښېږ دي پرېږدي

* * *

دهر سړ ي سر ه چه اشنا یي کړ ي
نه چه به (۱)تمه تري روښنایی کړي

داشنا یی سر ه غمو نه د ی
ځا ن به تر ي ژ غو ري که دانا یي کړي

* * *

دهن د ي میم د ی ز لفیني دا م لر ي
ذ قن د ي سیم د ی ستر ګي بادام لري

خیال به ته نه کړ ي خیال به نورځوك کا
چه په داد ور د حسن نا م لر ي

* * *

دهو ښیارا نو خو ږ ي خبر ي
قند د ي نبا ت د ی شهد و شکر ي

نا دا ن پهمثل غو ل خوا ر ه خر دی
دخو ږو خوند د ی و رځني لر ي

---

(۱) په اوله قلمی نسخه د (به ) په ځای (په) دی .

دیار د جور د غشی پرهر وکړي
زما په زړه کښي پراته دی او کړي
ددر ، د سپینو سره یې مل شوم
تو یې و نه وي را ته په ورو کړي

* * *

دیوټ(۱) هوا ده نن په شاخزار کښي
زرګي فریاد کا په مرغزار کښي
په غږ یې ذوق کا زما باز و نه
پرخه وریږی ګرځم په ښکار کښي

* * *

دپره خوشر نګه صاحب جمال یې
تر سر تر پایه پری مثال یې
عیب دي دا دی د درد دي ومه وینم
په مرد حرام په نا مرد حلال یې

* * *

راغله په وخت د ګلونو کښېنلي
ما وه له میو توبه وکښېنلي
وي یې چه تا ده توبه وکښېنلي
باده یې بیاو په زور را څښېنلي

* * *

ربه وما ته دولت اقبال را کړي
په لونلون (۲) ددنیا مال را کړي

حرام که شته دی(۳) د کار دپاره
چه مي تر ستو نې ځي هغه حلال راکړي

---

(۱) دیوځای نوم دی .
(۲) په اوله قلمی نسخه کښی (طور طور) راغلی دی .
(۳) په دوهمه او دریمه قلمی نسخوکښی (شبه) راغلی دی .

زړکی ! چه هسې په قهقه خاندې
همدا خندا دې کا دباز د وړاندې
هر څوك چه خاندی ښادی نه کاندې
غمونه و رشی په هغو باندې
* * *
زړه چه روان شی په لارې لارې
فایده یې وا یه و ما ته بارې
څو پسې درو مې اندوه به مومې
تولی به نه کړې پر ښنا نې چارې
* * *
زړه دې مین وی په تورې سپینې
خالي دې نه وی له یوې مینې
دا وی رښتیا دی عاشقان نه مری
مجنون ژوندی دی که ته یې وینې
* * *
زړه مې ډېر ښه شو چه ته مې یار شوې
زه دې بلبل شوم ته مې گلزار شوې
چه بې وفاوې حال مې دې ولیده
زما په زړه کښې یو تېره خارشوې
* * *
ساقی باقې دی د روژې څو ورځې
زه په خندا یم ژاړې و ربخې
تحویل د تلې (۱) اختر یو ځای را غله
حاضر په میو شه په چېر ته خوځې
* * *
سخ دې په کور دی چه دا څو چارې
لرې په کور کښې ښې ښې نگارې
ښه ښه ځایو نه ښه ښه لونونه
حمام په عطر و جامې بویدارې

---

(۱) دمیزان میاشت .

سړی چه کښېني تر سړي سيو ري
غار مه پر ي تېرو ی که ته يې ګو رې

رضا يې نه و ی(۱) وپا څېدو تـه
که يې لمبه کړ ي په لمن پو رې
* * *

سړ ی ځا رو ی د ی که ته يې و ينې
په تن‌په غـوښې په هډ په وينې

فر ق لـه ځارو ی لری په ګويا يی‌کښې
په رای پـه عقل په شنا خت پـه مينې
* * *

سړ ی خـه خيز دی ـه څه (۲)په‌کاندي
خا لـی تش نو م د ی اختيار پرې‌باندې

کـه باد شا ها ن د ی که لوی خانان دی
زور يـې هيڅ نه دی د قضا پـه وړاندې
* * *

سړی عز يـز بـه په دا دنيا کښې
که نه فا يـده يـې ده په زر فنـا کښې

چه‌و مر ی غـم نه وی غصه الم نه و ی
نه يـې سيا لـی‌و ی دسيال په خواکښې
* * *

شتـه ستا خبر ي پـنډ پنډ شکـر ي
پنډ پنډ شکر ي شتـه ستـا خبرې

پـه هر سـپی نغـر ي پـه ځوشکر ي
په ځو شکر ي پـه هر سپې نغـر ي

---

(۱) په دريمه قلمی نسخه کښی (نه شی) راغلی دی .
(۲) په دو همه قلمی نسخه کښې د (څه) په ځای (بد) راغلی دی .

ښځې به نه شي د هيچا يا رې
په خوله دې يارې په زړه اغيار ې
زهر د ننه په اندرون کښې
د پاسه ښکلې ښا يسته مارې
* * *
ښځې مې وليدې ډېرې بې شمارې
پاکې نېکې نې بدې بدکارې
چه نه کا نه کا چه کا خو وکا
د مرد په غيرکې نا پاکې چارې
* * *
ښکلي که ډېر دي په کندهار کښې
يا په کشمير کښې يا په فرخار کښې
لکه دا ښکلې د پېښور دي
هسې به نه وي په هيڅ ديار کښې
* * *
ښه مخ چه ووينې په زړه سخ سخ وايې
بد مخ چه ووينې په زړه چخ چخ وايې
که د خوشحال غوندې مين په مخ شي
تل به مخ مخ وايې تل به مخ مخ وايې
* * *
ښه يې پسند لی عقل تميز لرې
خو وايې هو مره هنر هر څيز لرې
موسی د خضر په پيروي تــه
ددې خبرې خبر که نيز لرې
* * *
ښې چين چين څښې ښښتنې جنې
په شين شين څې ځينې شين ځنې
نن نغتې نه شي تشي پوښتني
تشې پوښتنې فتني شي ځنې (۱)

---

(۱) په دې رباعی کښې دتجنيس صنعت څخه کار اخيستل شوی دی.

ښــې دی تر مښکــو دو طــن خاو ر ې
تــــو دې اوبــه دی دوطــن وا ور ې

زړه تا خــسر ی د لو ی دریاب کړ م
لا بــه په کو مو مو جو نو ما و رې

* * *

ښې ښې خبر ې شتــه په دا جها ن کښې
کمې يې نشته پــه هــر مــکان کښــې
که هر خــو ښکلــې مخو نه تــل ګو رم
بيا به تر ې و لا ړ شم په ډېر ارمان کښې

* * *

عاشقــه خاند ه نــن خو چه خــانــد ې
ښــه مخ ته رتا شــو لاند ې ته باند ې
طا لــع که هر کلــه هسې مد د کــــا
تل تل به هسې تر ما شی لا نــــد ې

* * *

عزت په دا کښې چه هيڅ درو غ نه کړې
دچا له غوږ ه، خوا نــه آرو غ نه کړ ې
که زړه ديار سا تــې ديار په زاى درومه
خپل زړه چه بد نه کړې بل زړه به روغ نه کړې

* * *

فــانــی دی واړه دا نــورې مينــــې
يــو ه با قــی ده کــه تــه يــې و ينې
خبـــر که نه شو ې په با قی مينـــه
ژا ړ ه که ژاړ ې په او ښکې وينـــې

* * *

فرزند چــه عا ق وی کــه ته يې وينــې
بد ې او بـــه د ی مر دا ر ې و ينــې

مينې د پاکو پا کــان پيــد ا کــــا
نا پــا ك پيــدا کا نا پا کــې مينـــې

قافلې و لاړې تر ما د و ړا نــدې
زه ګو ډ (۱) بار ګیر یم کټـه زاباندې
وز پسې درو مـم سر ه ښـو رېـړ م
پر پو ځـم ځار ښکی (۲) بازی‌راکاندې
* * *
قرآن چه لوست شــی په هغه کور کښې
غـم به یې نه و ی په سپین پـــه تورکښې
که یـې ګناه و ی هسی بـه سو ځـــی
لکـه خز له سو ځــی پــــه او ر کښې
* * *
کاتــه دستــر ګــو د خو لــې خبـر ې
وچېر تـــه تلنـــه نـژ دې یا لرې
دا چار ې وا ړ ه پـه لاس د ز ړ ه‌دی
باد شله یې ز ړه دی و جـــو د لـښکرې
* * *
کال د غـفـج (۳) ؤ خیبـر کـې هو رې
مغـل بنـدی وو ، هم کونډ ې بو ری
مو منـد شینـوا ر ی خـو اپر یدی وو
واړو و هلـې د یا دو (٤) تــو ر ې
* * *
کدو چه هسی پـــه منـډه دا نـګې
پا سه دې و لا ړ ې په بهـار ځا نګی
دا کار دې بـد نه د ی بـلا دې دا شوه
په سا ړه و چ شی په کښتـه زانګـــی

---

(۱) په دو همه قلمی نسخه کښی (ګند) راغلی دی .
(۲) یوه مرغۍ ده .
(۳) ۱۰۸۳.
(٤) په دوهمه قلمی نسخه کښی د (یادو) په ځای (باور) دی .

کمی هیڅ نه ؤ په ذوالفقار کښې
دروم د جیش په کارو زار کښې
چه تیغ برش کا فتنې جنبش کا
ویل هیڅ نه شی په هسې کار کښې

* * *

کناس (۱) که وا غوندی و ږیښمنې رنجې
بل څه به نه شی په تنجی پنجې
که یې د مښکو په نافه کښې واچوی
خپل بوی ښکاره کا په هرځای هنجې

* * *

که بدو یو نی بد لمسوو نی یې
په ځان په خپله اور لګو ونی یې
که نیت دې رو غ دی اندوه هیڅ مه کړه
جهان که غم شی ته ښا دی کړو نی یې

* * *

که بد یې ښه به شې په ښه خصلت کښې
که کم یې لوی به شې په لوی همت کښې
وفا له هر چا کړه جفا له هر چا وړه
دین او دنیا غواړه په ښه صحبت کښې

* * *

که په راستی د زرو تله شی
ته به په قدر په قیمت تر تله شې
خو بې دې هومره ده په خوله کښې ژبه
څو له درو غو هومره سا تله شې

* * *

که په یجنو ژ لا یجنو ز پسپو ځې
وا ړه کو هی د ی په کښې به پرېوځې
راشه په دین دقلند را نو شه
چه بې و سو سه په هرڅه کښېو ځې

---

(۱) جارو کښ :

که تل تل نو مړي پـه خو له شکر ي
خوند بـه در نـه کا پـــه دا خبر ي

مزه به ها لـــه د شکر و بيـا مو مي
چه خو له پر ي وو هي چه ويـي نغري

* * *

که تـه په قـدر د ځـان خبـر يـې
ته سر تـر پا يه وا ړه سـر ه زر يـې

زر دي پخپلـــه تر مس بتـــر کـړ ه
چــه نا سو تــی يې (۱) په بدوسر يې

* * *

که ځا ن دي و پيـژاند ه ها له سړی يې
ګـنه و ما تـــه د خـــر ه ځړ ی(۲) يې

او ل هم هيځ و ې بيا به هـم هيځ شې
چه ړو غ و ی ما ت شی هغه ګړی يې

* * *

که ځای دا من خورا ك پو شا ك لــر ي
شکر و کا ږ ه نو رخـه بلغاك(۳) لري

مت په طا عت کړه خلو ت ګز ين او ســـه
خــضر دو خت يــې که نفس هلاك لري

* * *

که خو ك دي وبنکنځــی غير ت پيدا نه کړي
دده و سر تـــه تو ر ه تر ملا نه کړي

نه حميت لــر ي نه شر م نتـګك لــر ي
مردی دي نشته غير ت په دا نـه کړ ي

---

(۱) په اوله قلمی نسخه کښی د(يې) په ځای (شوی) دی .
(۲) ځړی = دغوا او خره ځل (ظفر اللغات) .
(۳) شنور – زوږ .

که ځوك دي و ليد په استکبار (۱) کښېږي
په قول فعل په کا روبار کښېږي
په لار که درشي سلام يې مه له
پاتې چه پل ږدي دده په لار کښېږي
* * *
که خپسر خوار کړي ترتوري خاوري
په هر چا سوړ شي تر سرې واوري
جفا د خلکو په مخ په شاوړي
رنګ رنګ ګلونه به له تنه زاوري
* * *
که خوله مې پټه پر بړ دې هيڅ نه يې
که بلد دې بند شي وايه چه څه يې
په هره ساه شکر وکاږه
چه تند رستي لري هم هو مره ښه يې
* * *
که دغند نې يې که د صفت يې
کمې دې نشته هسې صورت يې
غند نه هو مره چه ددو زخ يې
صفت دې هسې چه د جنت يې
* * *
که د مردانو په دين ايين يې
نه بند په سره يې نه بند په سپين يې
که نه دې تخت شته نه دې افسر شته
قيصر د روم يې فغفور د چين يې
* * *
که ډېر نمو نځو نه روژه تل لري
هغه به مومې قسمت چه خپل لري
که دوزخې يې دوزخ به مومې
که جنتې يې څه غم دد ل لري

(۱) کبر ، غرور .

که ډېر وا لا شي په پار سا یی کښې
سیا ل دې څو ك نه و ی په ملا یی کښی
غافل هیڅ مه شه دنفس له مکـر ه
بلا پر بو ځی پـه آشنا یـی کښې
* * *
که ډېـر هو ښیار یـې یـا مړ نی یـې
په خو شخـو یی کښې شکر ګـنی یې
مدار پـه بخـت دی چه بخت مدد نه کا
هـم هیڅکـا ر ه یـې هم لـېو نی یې
* * *
که رنـګ ماهی خور ې که مړه پاره‌خورې
څوانی چـه و لا ړ ه دا اوار ه خورې
څوانی چـه و لاړه هوښیار هیـڅ نه یـې
غم دڅوانـی چـه دو باره خـو ر ې
* * *
که زر هنـر ه پـه هروښتـه لـر ې
بیا به په کار کښې تو کل تـه لـر ې
خوشحا له ! یو نشتته چه زړه پر ېښه‌کړې
نـن و رځ که څـو یه نمسی‌شپېته‌لرې
* * *
که زور دپیل لر ې ز ړه دضمیغم (۱) لرې
له تا چه غـم لر ی څنې به غم لـر ې
عـلا ج یـې و کړ ه لـه پسه خو ب کړه
په خپلـه خو نه کښې‌چه ما ر لړ م‌لرې
* * *
که زه دې ژاړ م چه ته مـې نه ژا ړ ې
که زه‌دې غـوا ړ م چه ته مې‌نه‌غواړې
کوښښ بـه وا ړ ه زما بر بـاد شـی
ما بـه د غـم پـه مز ر یو و داړ ې

---

(۱) زمری .

کــــه سره ټــو لــې کړې دکلی چر ګــې
نه واړه چرګــې نه دبــاز ستــر ګې
نه دو ه سو ه ښکلــې جو نه ښې با کــې
نــــه يو ه ښکلـــې د پا کــې پر ګې
* * *
که لال و دُر دی د خــو شحا ل خبرې
چه ته يــې نه مــنې له تا د ی لـــر ې
بخــر ې د هــر چــا جــدا جــدا د ی
کا ر ګا ن ګند ګی خورې تو تيان شکرې
* * *
که مړ نې يــې مغفر (۱) شګا ف يــې
دباد شا هــا نــو د لو ی مصا ف يــې
تـــر دا دوا ړ ه بهتـــر دا کـــار د ی
په عهد قو ل کــه سينــه صا ف يــې
* * *
که نا سپا س يــې ناس يــې نسناس يې
ناس يــې نسناس يې که ناسپاس يــې
که حــق شنا س يــې ها لـــه ته ناس يې
ها لـــه ته نا س يې که حق شناس يې
* * *
که هر څو کاندې څه کمــې زيا تـــې
ميخو رې ښــې کا د ځينو مـــا تـــې
که يــې خلل پــه ايما ن کښــې نه وی
مومن به نه شی په دو زخ کښی پا تې
* * *
که يار زما يې سکه درد اشا م به شې
که صاف صوفی يې په خپل فرجام (۲) به شې
زه او س قلا ش يم رند يم او باش يــم
را سره مه کښينه ګــنه بد نام به شې

(۱) خول (۲) فرجام = انجام ـ ښه ګړه ـ خوښی . (ظفر اللغات) .

که یې تر سپینو تر سرو کړې لاندې
داوا ړه هیڅ دی په بد رنګه باندې
که یې د پو ز ې لو نګ هم نه وی
ښه مخ بې پسو له زیبا یې کاندې
* * *
که یې وفا درلې ښې دی دلبرې
ولې هیڅ نه دېلا په داخبرې
دتورو زلفو د مهر بوی نشته
که په نمو د دی لکه عنبرې
* * *
ګرا ن تر ایما ن دی که ته یې وینې
کار د ښې مینې څګر کا وینې
سل کبیره کړی ایما ن په ځای وی
په صغیره ځې دا ښې ښې مینې
* * *
ګل دګلا بو شو ې چه رنګ و بوی لرې
شیدا بلبله په هر هرسوی(۱) لرې
دریغه داکار دې په ذات کښې نه وای
وفا دې نشته دا خوی بد خوی لرې
* * *
ګلزار ته را غله ختې ګلګو نې
دمخ شغلې یې تر لمر افزو نې
پرخه پرې نه وه پر ته له شرمه
تر هر هر ګل شو ې خو لې بیرو نې
* * *
ګل شوې د خو ړې د بڼ پلو سې
خوشحا له و لې بې ګشته اوسې
ګشت د ګلو نو ښکار د با زو نو کړه
چه کوڼ ته ډېرې خو ښې یو سې

---

(۱) په دریمه قلمي نسخه کښې (موی)، راغلی دی.

ګل يـې په شو نـه و په مخ منـګلـې
سترګـې دې بـاز دی با ښـه منـګلې

که يو لـک ښکلـې و بلـه ټو لـې شی
يو لـک من ته يـې نو رې من (۱) کلې

* * *

لعل لـــه کا نـه په بد خشا ن کښېـې
لؤ لؤ لــه بحر ه په لو ی عمان کښې

په ځيګر خو ن خيـږ ي دا دوا ړ ه تو که
که فکر و کا سـړ ی پـه ځا ن کښې

* * *

لکه په تا کښې شتـه نشتـه په چا کښې
نه په کا نو نو ، نه په در يـــا کښېـې

در يـغه خوشحا لــه خـټکه د ر يغـه
چه تل به نه و ې پـه دا دنيـــاکښې

* * *

لؤلؤ دې غـا ښ دی يا قو ت دې شونډې
دډېروخـو نـې در پسې ډونـډې (۲)

چه تا څو ك و وينې په تـا مين نـــه شي
پـه ز ړه دا نـه دی ياسختې پونډې

* * *

له خپله يار ه چـــه بد ګـو يي کـړې
داغيـا رانو چــه د ل جو يـې کړې

حـق شتــه انصا ف شته عذاب، ثوابشته
ولـې دا هســې نا پير زو يـی کـړ ې

---

(۱) يعنې ته يوازې يو لك من يې او هغوی کلې (ټولې) من دی (کامل) .
(۲) ميراث – وران (ظفر اللغات).

له تا چه وېره کا ځني به و يره کړي
يا به يې وېره له زړه بد ره کړي
که يې دو پر ي علاج دروغ نه شي
مېنه کړه چه زر يې مهم ترسره کړي
* * *
له دې دنيا نه به اخر سفر وکړي
يا تې به نه شي که ډېر هنر وکړي
عمل د نېکو دوړانده ي وا ستوه
ښه نا م د لي پر پرې ده که هومره چرو کړي
* * *
له لا ر ي مه غړ پړ ه خو ځه په لار ي
که پړ پوځي يا ځه خو ځه په لار ي
بې لا ر ي وا ړ ه غو لا ن ددا ن د ی
غو لا ن ددا ن نشته خوځه په لاري
* * *
مرد ی دې هیڅ ده که په ز ړه شېر نه يې
څه خو ، خو وشه که زړو ر ډېر نه يې
ترسر چه تېر شي و پر ه هيڅ نه وی
وېر ه د ي هو مره ده چه ترسرتېر نه يې
* * *
مرد يې که هيڅ پر ي وېر ه له چا نه کړي
تمه له چا نه کړ ي غم د دنيا نه کړي
که لوی منصب لر ي خاص د باد شاه يې
له ميره پيره به خوف ورجانه کړي
* * *
ملا هر ګو ره په ځا ن مغرور يې
بحث جدل کړ ي په هرچا سور يې
زه دې د ننه په حا ل خبر يم
زما په پو هه يو تش تنبور يې

منت د چامــه و ړه د يو ي تــو ر ي(۱)
شو نه ي کښې مه ږ ده په غو ړ ي سپو ري
نور څو ك لا پر پــړ ده که زویه ورور وی
اور کړه ددو يــو په خپلــو ی. پــو رې
* * *
مېلــمه په تاو را غـــي پــه لاس کښې تيږې
اول يې غوښت(۲)غوښتل اوس سپيني وريجې
دا هم لا پــ ريږ ده واس تــه گــو ره
کو ري غوړی غوا ړی ورښی ويږي
* * *
ناز به دې زه و ړمه چــه يار زما يـــې
چه بد د ي ښــه گــڼم څو را تــه وايې
غــمه هيڅ مــه درو مــه ز ما لـــه خانه
چه تــه زما سره څنګه ن اشنــا يـــې
* * *
ناست پــه گلزار کښې يار په کنار کښې
با ده گر دانه مطر ب پــــه کار کښې
داحال چــه زه لر م په خپــل د يــار کښې
باد شاه يــې نه لری په هندو بار کښې
* * *
نافــې دمښکــو دی ددا نــا خبــر ي
څو يــې پرانيــځې نګهت يې نغــر ي
دنــا دا نــا نو خبـــر ي هــو ږې د ی
دمښکــو بو ی شــی پــه هوږ وليږي

(۱) ديوی تورې پېسی .
(۲) گال .

نامرد به ګرځی دپلار په نام پسې
ځوانمرد به ګرځی په خپل صمصام پسې

دولت مخ څخې لری څخې یې په نورو وې
مخ ددو لت دی په نیک فرجام پسې
* * *

نو(۱) مې پرې نه یښی فراق په کام کښې
ستړ ې مرغه یم نښتی په دا م کښې

دخوبنی جام مې هسې نسکور شو
چه څاڅکی پاتې ، نه شو په جام کښې
* * *

نه ور بشینه د خپلې خو نې
نه چه غنمینه د بلې خو نې

ځینو بې ځا یه خو نې تا لا کړ ې
په ځا ی مر دا نو خور ولې خو نې
* * *

نیستی هستی ده که ته پو هېږې
لو یې پستې ده که ته پو هېږې

بده تر هر څه په دا جها ن کښې
خود پر ستې د ه که ته پوهېږې
* * *

واړه فا نې د ی ددنیا چا ر ې
په هیچا تل نه و ی سر ه قرارې

چه زړه یې و تا ړه با ند ې یك لخته
دهغو سړ یو د ی بخر ې خوارې

---

(۱) تری ــ لوند والی .

وایـــې صو فی شــه صو فی دې ته شي
درو مه نا اهله شپږ (۱) سوه‌شپیته شي
که یار ساقي و ی عمــو باقــی و ی
لا بـــه د میـــو بنیبنـــې کړ م تـــشي
* * *
وخت د بهار د ی خو شحا له خه کړ ي
ولـــې ګلګشت دګلو نو نــــه کړ ي
سترګـــې مې تتـــې شو ې ګل ته په خه‌ګورم
پیر ی چا ر ي را با نـــد ي و کـــړ ي
* * *
وږی چه نغن مو مـــې شکر دې کا ند ي
غو ړی که نه مومی پا سه ور بانـــد ي
سترې ی دې شکر کـــا کــــه اس یې نه وی
پـــــه لار کـــه خر و یني تر ځان‌دلاندې
* * *
وفـــا بــــه هیچېر ي لــــه کمـــنا ته نه مو مې
کـــه همه عمر پـــه زړه دده د رو مــــې
تېوس به باز نـــه شـــی زا غ به توتی‌نه شی
په تـــر بیـــت یـــې که بو علـــی مو مې
* * *
هســـې بل هـــم ګـــنه لکـــــه چه ته یې
هر خو ك به بنـــه ګنې په ځان‌که بنه یې
که ته مو من یـــې هر خو ك مو من ګـــنې
هر خوك‌کـــا فر ګنې که کا فر تـــه یـــې

---

(۱) شپږ سوه شپیته دابجد په حساب (خس) کیږی .

هغه مفلس يې که څه غنالر ي
که څه‌غنا لري و لی غنا (۱) لري
که حق د چا ر ي يا داشنا ليري
ور ځنې و لې ځا ن نا اشنا لر ي

* * *

هوا هو س کړ ي په قهقه خاند ي
بې غمه خو ب کړ ي پا لنګ‌درلاندي
ښه ميارك شه ښادی در پا ند ي
غمو نه نه لر ي دګو ر د وړاند ي

* * *

هوښيار ته ګو ل شه که ډېر پو هېږ ي
څو خا مو شي کړ ي نه به سپتو هېږي
منګې چه ډك و ی کله اوا ز کا
څه ښه د ليل د ی که پر ې‌ګرو هېږي

* * *

هوښيار چه وا ور ې دپند خبر ي
ور باند ې لګې لکه شکر ي
نادا ن د خرو نو په شمار حساب‌دی
دپند شکر ې په خرو نو نغر ي

* * *

هو مر ه بد لې هو مره سند ر ې
تما مې نه شو ې د عشق خبر ي
فهم مې و کړ دعشق په کار کښې
لر ې نژ دې د ی نژ دې د ی لېر ي

* * *

هو مر ه بلا د ی و تا ته پنډ ي
چه شمار يې نشته پټې بر منډ ي
ګوره په کو مه بلا به سر شې
چه په کښې ګرځې په منډ ي منډ ي

---

(۱) رنځ ـ مشقت .

هو مره ثوا ب د ی ثو مفسد ا ن وژنې
ثو مفسدا ن و ژنې ګنهه ددا ن و ژنې
وبا ل یې وا ړه ز ما پــه غــا ړ ه
فتوا د عدل ده ثو چه‌بدان وژ نې
* * *

یو مو تې خا و رې و ی هو مره دماغورکړې
ننه په ز ړ ه کښې عقل څراغورکړې
دملك دبند و د بست خبــر ې
فکر د کښت و دکر دبا غ و ر کړ ې

(ی)

پا سې یا کو ز ې داکار سا ز ی
په څو څو رنګه د لنواز ی
اسما ن تــه ګو ر ه مځکې ته‌ګوره
دا چا ر ې نه د ی لو بې بـا ز ی
* * *

په کار هیڅ نه دی خا لـی مستی
څو لا پــه ز ړه لر ې د غـم هستی
هستی تما مه په مستی کښې وبازه
له ما نه ز ده کړه مې پر ستی
* * *

جهان در ست ډ ك شو دناحقی
لکه پیمد لې(۱) اوږی پــه مــی
چه ځای پرې نه نیسی ښو ری ښویږی
د سر دانــه یې خوشحا لــه ته یې
* * *

چه تل یې مټ و ی په خود کــا می
اندوه یې نه و ی د بد نــا می
درست نا سپا س و ی حق نا شنا س‌وی
هر څــه به با یلی پــه دا خامی

---

(۱) پیمدل ـ په مزی کښی پیل ·

چه خوند ، دې را غی داشنــــا یــی
ګرا ن یــې دستر ګو تر روښنایی
دعا به دا کړ م پـــه پنځه و ختـــه
چه دژ د دې نه و ی د جــدا یـــی
* * *
چه دم یـــې نـــــه زده داږ ښکـــی (۱)
داژ دها نیسی لــو یـــه لکـــی
نادا ن دی پــر پــړ ده ور باندې مه مړه
دنــصیحــت د سا بــو ن چــکــی
* * *
چــه را پــه یاد شــی دنفــس بد ی
لا یــې تر اوسه د غـــم غــد ی
ځوانی لا پــر بړ ده پـه سپینه ږیر ه
فریاد فر یاد د ی هــو مر ه بــدی
* * *
چه را ښکاره شو ه یـو ه سړ ی (۲)
زړه مــې پرې بایلـو هغـه ګــړ ی
دژ ړه ښنــد نـــه اسا نه ، نـه ده
بې ځایه خوك ښندی یوه دمړی (۳)
* * *
چــه غم یــې نــهوی دبد نا مـــــی
واړه یـــې مخوی په خود کا مــی
دارنګ سړ ی که دې زوی وروروی
ځنې وېزار شیء پـــه دا خا مــی

---

(۱) یوقسم اوږد چینجی دی چه دمار په شان ښکاری .(ظفر اللغات)
(۲) سړی دسړی مؤنث یعنی ښځه .
(۳) دمړی = دپیسې څلورمه حصه .

چه غم يې نه وي دنيکنا مې
واړه يې مخ وي په خود کا مې

نه به يې دين وي مه ترې وفا غواړه(۱)
هر څه يې هيڅ وي په دا خا مې

* * *

څوك دي غم نه کا دنا مرادي
نه به تل غم وي نه تل ښادي

دفلك عدل انصاف ښکاره دي
کار يې دظلم د بيدا دي

* * *

دچا چه نه وي دور اند يښې
مه يې يار ې وينې مه يې خويښې

دهغې ونې ګلو نه مه وينې
چه يې اغزي وي ددلر پښې

* * *

دربغه په باد ولاړې څه شوې ځوانې
يوه شپه خوب ؤ ستا کا مرانې

ويښ شوم بيدار شوم په پيرې واوښتم
نه ږغ د تورې شته نه دخانې

* * *

دربغه ځوانې ستا کا مرانې
غږ مې د تورو غږ د خانې

زوړ شوم ناتوان شوم خيال مې دتورې
که بېرته را شې ز ما ځوانې

---

(۱) په اوله قلمي نسخه کښې د (وفا) په ځای دنيا راغلې دی .

راشه که ګو رې دا خو نـــړ ی (۱)
ســر بـــې و ړ ی پـه سرډړ ی

تل تـل سرو نـه دعا شفا نـــو
و حلـق تـه اچـو ې لکـــه مــړ ی
* * *

رند یـم خـر ګندې د ی ز ما بـدی
چـــه را ته یو د ی خپلې پرد ی

پــیغور زما مه کړه شیخه خپل زړه ګوره
چه پکښـــې پنډ ې دی دعشق غدی
* * *

که ډیر دو لـــت لر ې ډیـر ې مستی
دا وا ړ ه هـیڅ دی بې تنـد رستـــی

که پر ې پـو هیږ ې څو تند رستی ده
چه حلا و ت لر ی ستـــا د هستی
* * *

که یـې له حا له خوشحا ل پو ښتـــی
ښځـې همـه دی کـړ ې پښتـــی

کړ ې پښتـــی بـه در سمـــې نه شی
که په هنـر کښې نا مــی‌پوښتی
* * *

لکـه پــر ی یــو ه ســړ ی
په مخ مـهو شـه عنبـــر خـــړ ی
هـــار یـې پـــه غا ړ ه د سرو ګـلو نو
بخت کړه له ما سره غـا ړه غړی

(۱) له خونړی نه مطلب دغه دنیا ده .

نن په نظر را غلـه يو ه تـر ی (۱)
زنـــه يـــې سبب وه شونډې نری

بله به نـه وی هســـې د لبـــر ه
نه په خشکی نـه پـه تـر ی (۲)

* * *

هغه چه مخ کا پـه خود کـــا می
پر ې به وز د رو می بـې آرا مـی

رند يم او باش يـم عاشق قلاش يـم
اندو ه مـې نشتـه دبد نـــا می

* * *

هغـــه چـه کانـد ی عـز م کشـی
هغـه بـــه مو می ډېر ې خو شی

خاو ر ې شـه خاو رې چه گل له تا کېږی
اور بـه دربل شـی پـه آ تشـی

---

(۱) دختـکو دتر ی پښتې يوه نسخه (کامل) .
(۲) په وچه لمده.

# دخوشحال نادرې څلوريزې

دخوشحال (۷۰) نادرې څلوريزې دپښتو ټولنې داولې قلمي نسخې څخه نقل شوې او دخوشحال درباعياتو سره يوځای کړی شوې . دغه څلوريزې نه په چاپې ديوانونو کښې راغلې دی او نه په نورو قلمي نسخو کښې، نو ځکه يې يو ډېر نادر سوغات بولو .

# الف

جنګك چه سنڼا کا هسې يې مړ نـکا
با د خور با تورغوند ي پهغوڅه زوږنه کا
دمـا خبـرې وا ړه پنـد و نـــه د ی
هو ښيار به و لـی په پندو نو غو ږنه کا

* * *

که خپل بابا و رتـــه نصيحـت پند کا
کو شش دده پـه خوبۍ هر چنـد کـا
نه يې څـه سو د و ی نه يې فايده وی
نا دا ن په هر څه کښې خپل ځان څرګند کا

* * *

هوښيار چـه ناست وی نادان خبـر ي کا
سپی د ی ټمبړی(۱) څو ك دې کر ي کا
چه څو ك يې نه پو ښتی خا مو ش دې اوسی
که هر څـو تو ی تـر خو لې شکرې کا

* * *

هوښيار مر غه له بره نـظـر و کــــا
لو مــه چه و ينی له دا نــې حذر و کا
نا دان مر غو نه لو مــې ته نه ګـو ر ی
دانــه چه ووينی پـه دا نه څرو کــــا

# (ر)

راشه که ګـو ری و نـــه د د هـــر
نشو نـما لر ی د سما پــــه نهــر
لکـه پيـدا شــی هسـې فنــا شــی
الوا نی پا نـې ، نو شی هـــم ز هر

---

(۱) ټمبېدل ، غېږدل او چونګېدل .

## «ل»

په مخــه را غله را تــه يــې و خنـــد ل
درو مر جا ن يې را با ندې و شند ل
ددوا ړ و شو نــډ و بو سه يــې را کړ ه
شهد و شکر ، نبــا ت يــې و غنـــد ل

## (و)

څوك چـــه رسوا شي پــه بد و چا رو
پل بــې پر واز د ی پــه بــدو لا ر و
دليــل يـــې دا د ی د کـــم علـقــی
کم عقل خوار دی پـــه دوا ړ ه دا ر و

* * *

ښکاريان په ښکار در ومی په ترنډ وترنډو
غو ښی د ښکار را و ړی په‌پنډو پنډو
ځينې چه ښکار کا ، لر ی کو لمې مو می
ږ وی دار پـــه کور مو می بخرې دلنډو

* * *

مريد چه و و زی د پير له ستـــر ګـــو
لکـــه چه خو سا شی هو يه دچر ګـــو
په تش نـــاظر کښې يې هسې نېستی ده
تندر با را ن د ی نــظر د بــز ر ګـــو

## (ه)

باز چه په قدر د ی لــه خپله رو يـــه
ټپوس چه خوار د ی له خپله خو يــه

که تو رې خا و رې و ی قېمت پيـــدا کا
چه بهر ه و ا خلـــی د ګــل له بو يه

جفا چه وینی له خپله یاره
له بله و وینی جفا بسیاره
لږه جفا یې له یاره ډېره شي
غوغر انده وشی و رته تیاره

* * *

جهان درست ډك شو له حرص آزه
جیفه خواره دی واړه بې بازه
زاغ و زغن دی کرگس کل مرغدی
ښنخ په مردار ه هریو خوله وازه

* * *

چه زړه یې یو وی بله یې ژبه
بلا به تل وی باندې غالبه
خپل ځان به هیڅ تند رست و نه وینی
تل به نیولی وی په لویه تبه

* * *

چېر ته هوس دی چېر ته عیشونه
په دا قهرونه په دا طیشونه
وخت د قیامت دی که څه بلاشوه
زوی پلارونه کا، سره جیشونه

* * *

څو دې وجود دی تر سرترپایه
چه دې موندلی دی له یو خدایه
واړه نعمت دی که غافل نه یې
هر ځای ته گوره شکر یې وایه

* * *

دا هومره و نې په غره په سمه
یوه به نه وی له سروسمه
سرو سرکوز کا، چه قد دې وستایم
ربښتیا و یل دی بتر ترسمه (۱)

---

(۱) سم = زهر.

دګـــچ و هلـــی محـــل ښنبتنــــه
عدل انصاف کـړه د دا د پو ښـتنـه
دمرګ د سـېلاب شتـه چه ورته هېڅ دی
دګـچ وهلـــی محـل لــــو ښتنـــه
• • •

دنیا مې د پـره تر سر قربان کـړه
ښکاره مـې تو ره په درست جها ن کړه
پیری چـه را غله ترك دنیـــا شوم
ځـوانی مـې تېره په ښه ښه شان کړه
• • •

ښځـه چـه ټینګـه وی په خپلـه تنګه
په خپل پا لنګ کا نـهالـی رنګه
حـق یـې په ځای کـړ دښکنا مـی
نور یـې خدای مه کړه ښکنا می ړ نګه
• • •

که خوك د ې کښېږ دی په تندی توره
یا دې لمـن کا په ز رو پـــو ر ه
که نه پر ې خو ښ شـې نه پر ې دلګیره
ها له عارف یـې بــلا د ې دو ر ه
• • •

کـــه دې دا دی ، کـړ ه او و ړ ه
الـــو داع د ځــــا ن و ز ړ ه
د ژو نـد یو ز ړ ه بــه یو ســـې
لا بـهـ ز ړ ه یو سـې دمـړ ه
• • •

که هر څو باز لـــر ی غو ټـه مهینـه
په هـمت لږ د ی بیــا تر شــا هینـــه

کـړه پـګړ ی د ې په سر هغه کښېږدی
چـــه برا بر ې ښـــز ې و هینــــه

ناز و نیاز لری محب محبوب به
سره به مومی را غب مرغو به

څوك ور پسې ځی په چا پسې ځی
راشه که ګوری طالب مطلوب به

• • •

وریجې غنم دی په غله کښې غوره
ګنه په کار ده غله یکسره

ما درته وویل دلیل یې تاز ده
چه پرې پوهیږې باندې دره(۱)

• • •

هغه چه مست دی دحق له جامه
هغه آزاد دی له هره دامه

مقصود یې حق دی ورته یکسانه
کعبه که دیر دواړه مقامه

## (ی)

بې ځایه ناز دیاری زوال دی
بی وخته راز دصورت وبال دی

دزوروراد ب په ځای لره
یاری دې ولاړه که دې پرې خیال دی

• • •

تل تل ګلونه آب روان وی
ښې ښې دلبرې شراب ترمیان وی
زوړ یې دننه په زړه کښې رنځوی
تل ددلبرو دپاره ځوان وی

---

(۱) ښایی معنی یې دریږه وی .

جهان یو بحر و رطو (۱) نه سازدی
کامل په مثل لکه آب بـاز دی
وېره دې نه کـا په دا دریـا بکښې
چه آب بـاز ه سـر ه امبـاز دی
* * *
چه زړونــه ډېـر لری که دې پسر دی
پسر یې مه بو لـه چه کوس مادردی
دښځـو زړو نه په ګـو ګـل کښې ډېردی
دمر دیو زړه دی یو یـې ذکردی
* * *
دا رو دد ر دد ی رخ ور د (۲) دی
دده رخ ور دد ی دا رو ذ دز ذ دی
دا دې رخزر د دی دل دا ده وا ړه
دل دا ده وا ړه دا دی رخ زرد دی
* * *
دو لت د فقـر عـجب دو لــت دی
دخدای پــه فضل پــه عنا یـت دی
فقـر هغـه دې چـه په اختیـار دی
پـه اضطرار کښـې فقـر آفـت دی
* * *
که بدخو یـی کا صا یـم معـذ و ر دی
لګـه صا یم دی هسی رنځـور دی
بدر یم د ړو ښـیم ستړی د لا ر ې
که بـد خویـې کاپـه دا دستور دی

---

(۱) ورطه ، عربي کلمه ده دغر قېدو او ډو بېدو ځای .

(۲) سورګل .

که رسید لی و ما ته در د دی
دهیز له لا سه خه آ ه سر د دی
که مر د د لاند ی و ی بنځه دپاسه‌وی
په دوا ړ ه تو که ظفر دمرد د ی
* * *
لیده په ستر ګو نشی کلیم د ی
راسره هر کله مو نس ند یم د ی
هغه خبر ې پخپل بیا ض کښیم
چه یې تو تا غو ند ې را ته تعلیم‌دی
* * *
هیڅو ك دمښکو د عنبر ساز نه د ی
په سل په‌دو ه سوه‌سره ممتازنه‌دی
له کومه راشی ددو لت یو ستو ری
پر ې سر فراز شی که سر فراز نه د ی
* * *

## (ې)

بیا می شکر په کو ډ ی کشید ی
مینه په شپه یې د راز چشید ی
دریم خو پایم ستر ګی ستا ستا یم
کښي په خو ب کښې پسی پر ید ی
* * *
په پنډ پنډ خیر ی پر ې ننو ځی
خو ك به د ز ړو نو سو ړ ې‌پرانیځی
دوه به و نه و ینی سر ه پیلی
دخلقو ز ړو نه په یوه مز ی

(۱) ددې رباعی دپاسه لیکل شنوی‌دی‌چه په پارسی‌هم‌لوسته شی، مګر خوټکی پکښې فارسی دی لکه کشیدی ،چشیدی، پریدی .

پــه تو رو خا و رو کښېـــې که ګو هرپراته‌وی
په خوا رو ستـــر ګو و رتــه کا ته وی
پـــه دا کـــم نه شی د ګـــو هرو قـــدر
دپو هو ستر ګـــو باند ې واته (۱) وی

• • •

پــه ښو ښـــو رنـــګه ښـــی آ دم د ی
پیـــدا پـــه قدر سر ه زیـــا ت وکم دی
ځینې انســـان دی ځینـــې د دا ن د ی
ځینـــې لـــه خرو نـــو لـــه سپیـــوسم‌دی

• • •

چه تـــل او ده و ی هغـــه به مړه‌وی
چه خو ب یې نه وی هغه به نـــــه و ی
تر منځ ددوا ړ و هر ښـــو ك روزګارکا
نه ښو ك تـــل و یښ وی‌نه تل‌اوده‌وی

• • •

خانی په چـــا ښا یی چـــه ډېر تور زن‌وی
بخښېل خور و ل کا په نام مین و ی

نه هر زه کا رو ی نه بـــد ګـــفتار و ی
ښه بـــه د هر چا پـــر ې مبرهـــن و ی

• • •

خواږه دمن د ی کـــــه ګـــبینـــــی د ی
که کور، کـــه نخل که خوږ ګنـــی دی

دا وا ړ ه دا ل د ی دحـــق په شنا خت‌کښې
چـــه فکر نه کـــا ښـــه لـــهو نـــی د ی

---

(۱) ښایی واته دباور په معنی وی ځکه چه وتنه په دغه معنی په ادب کښې ډېره (واته وتنه) دواړه دحاصل مصدر شکلونه دی .

دانا کسان دي وګړي کسي
دغره و اور ته لا سو نه نیسي
در چه په سپینو په سرو مو ند لشي
دی یې په تو رو پیسو را نیسي

* * *

ددرد دوا دي په ر نځور نن شي
ګانده یې خه کا چه دکفن شي
درد مند په حال د رد مند خبر وی
زه به دعاکړم چه بې درد ، دردمن‌شي

* * *

ددنیا خونې به واړه میراتې شي
دولت که ډېر شي واړه‌به پاتې‌شي
چه لېچور شي ظلم په لاس واخلي
دده د ظلم لېچې د ي ما تې شي

* * *

دما په غم چه ښادی کا ندی
یا سبزی اور لګی پرې لاندې‌باندې
دما په دواړو تپو پیغام دی
چه خاندی ژاړی چه ژاړی خاندی

* * *

زوی نمسی زېړی نمسی پردی زېړی
بیا یې که ګورې په ځه بدی زېړی
وخت دقیا مت را غی که ځه‌بلاشوه
چه دسړیو نه بدرنګی سپی زېړی

* * *

سخ د هغو دی چه قنا عت لری
چه قنا عت لری وا ړه دولت لری

په دا خبره هر څوك خبر دی
چه صبر نه لری کله حکمت‌لری

عاشق دې هر کله مست وشیدا وی
په لپو نتوب کښې دې په ملک رسواوی
په هو ښیاری کښې اندوه غمو نه وی
چه مست شی کله له چا پروا وی
* * *
غافل به هېچېرې له خوبه موړنه شی
عمر به داوی څوپکښې زوړ نه شی
هغه کار نه چه د بېدارانو دی
هغو کار نو ته به جوړ نه شی
* * *
غافل چه هسې ببهو ده غورځی
لکه چه غورځی هسې به پرځی
په مغز خبر نه شو په مثل سپږه دی
دپوست د کښیه د پاسه ګرځی
* * *
قلم چه نیسی په ګوتو ډېر دی
دقلمو نو وهل په پېر دی
ځینې کو نجکې دی ځینې مشکنې
ځینې تر لا لو تر د رو تېر دی
* * *
که تس پدو نی که پر پو تو نی
که څوك ښه یو نی که څوك بدیو نی
چه په صراط به ګانده تېر یږی
هغه تن وینی واړه لیدو نی
* * *
می که حرام دی ګوره چه څوك یې خوری
له چا خوږ ل شی بهره ترې څومره وری
چه ښه تحقیق کا دا دوه درې شرطه
هغه چه می نه خوری په غم کښې مری

نیک خواه به ستا په خو ښی خوشحال وی
بد خواه به ستا په ښادی ملال وی
ته په دا د وا ړه توکه نظر لره
که دې څه عقل څه استعداد کمال وی
* * *
وکا ئنات و ته چه ننداره شی
عجب کار ونه پکښې ښکاره شی
ډیر خو ښ لـه ځانه وی چه هیڅ کاره شی
ډیر ناکټلی وی چه په شماره شی
* * *
هورته چه مینه وی مهرو فا وی
ور سره هو مره جورو جفا وی
دا دو د نن نه دی قدیم د کښلیو دی
چه هم یې مخ وی هم یې قفاوی
* * *
هو ښیار هغه دی چه په غم کښې ښادوی
دیو ه عسر دوه یسره یادوی
صبر دې و کا فرح به بیا مومی
نا حق په غم کښې څوك په فریا دوی
* * *
هوښیار هغه دی چه ډیر دوستان لری
په دښمنا نو باندې احسا ن لری
دښمن دې دو ست کا، دوست دې دښمن نه کا
خو ږ دې د هر چا سره زبا ن لری
* * *
هغه چه زه و ینم هر څوك یې نه وینی
ړانده به باغ د ګلو نو څه وینی
ځار یې تر سترګو عجب لیدو نی دی
چه نظر وکا د ننه زړه وینی

هغه شیخی کړه چه رندا نه وی
نه چه زبو نه چه کندا نه وی
کار په فتوا کړه تو ره تر ملا کړه
ګټه د توري شهندانه (۱) وی

* * *

## (ي)

توري بلا لري توري عینیني
تور اژدها لري توري زلفیني
دما په زړه وه چه خوب به خو کا
چه دا بلا دی وربانده تیني

* * *

چه دواړه سترګې په رنجو توري کړي
سره نمری(۲) واغوندي، زلفي نسکوری کړي

هم سري لمبی شی هم تور لوګی شی
بابا دي ومره، یو اور را پوري کړي

* * *

چه مبتلا شی په مه جبیني
هو مره خوار پړی په خپلي میني

قیس مجنون نه ؤ لیلی مجنون کړ
په کوهکن وکړي شندي شیريني

* * *

سیالی له مرده مه کړه ته ښځي
یو کار د توري دی بل د تښځي

اس به غله خوري ته به بیا غول خوري
خره داس نه که په دو ته ښه ځي

---

(۱) دشیندی او شاهین په شان
(۲) جامی او لباس .

صوفی کافر دی په خپل پندار کښې
ملا ملحد دی د حق په کار کښې
ځار تر رندا نو چه مخ څنې یو لری
یك رنګ و لاړ دی په هره چار کښې
* * *
ګوره چه کېږی په خوشحال شندې
او به په خنګ کښې مرګ یې له تندې
له چا به څه لره ما نه ګله کا
خود یې په ځان وکړې دا رنګ ناپسندې
* * *
که فرج خوندی کا عینی
نظر یې تل وی په شفتینې
نور یې هم دین شو هم یې دنیا شوه
بلا به نه شی په ښځې تینې
* * *

ی

څوك چه دولت لری د تند رستی
نا حق به ژاړی د تنګدستی
د تند رستی دولت عطا دی
ور ته به نه رسی نوری هستی
* * *
د میو ر سر ګوره یا یې لکی
کښېلې یې ښه غاړه ښې ښې ټکی
که پښې ښې نه لری نظر پرې مه کړه
یو یو په مخ وړی د پرې نېکی

# دخوشحال خلوریزی

خوشحال ختک په منلی ډول دپښتو شاعری اوپښتو ادب پلار بلل شوی دی او داځکه چه نه بل چا دده هو مره پراخه شاعری کړي ده اونه یې دده په اندازه شعرونه ویلی دی .

دده داشعارو کلیات څلورښت زرو بیتونو ته رسیږی اودمعلومو کتابونو شمیر یې (۱۲) ټوکه دی چه هرکتاب یې په خپل خپل ځای‌دمعنی اولفظ دواړو له حیثه پوره ارزښت لری .

دخوشحال داشعارو کلیات په کندهار کښې دښاغلی حبیبی له خوا او په پېښور کښې دښاغلی کامل اورساله خوا چاپ شوی دی مګر غلطی اونارسایی پکښی زیاتی دی. دپښتوټولنې نیت داؤ چه دخوشحال کلیات دقلمی نسخو دځوري مقابلی نه وروسته چاپ کړی او دغه لوړادبی سوغات پښتنی دنیا ته وړاندې کړی. مګر دغه درونډ کار ډیر وخت او زیات زحمت غوښته ،له دغه کبله مو اراده وکړه چه سملاسی دخوشحال د ۲۹۰تلین دنمانځنی دپاره یوازې دده رباعیات چاپ کړو. دخوشحال درباعیاتو دنقلولوکار په اول ځل دادبیاتو په څانګه کښی د ښاغلی محمد اسمعیل سرېن له خوا سرته ورسید ، پس له هغه دښاغلی بختانی، ځدران ،سرېن ، حبیب الله اپریدی او شاه ولی صافی له خوا دنورو‌چاپی اوقلمی نسخو سره مقابله شو او بیا دښاغلی حفیظ الله او سرېن له خوا پاکنویس کړی شو .

په پښتو ټولنه کښې دخوشحال دديوان‌دري‌قلمي‌نسخي اودرې چاپی نسخی موجودی دی چه په لاندې ډول ښودل کیږی :

۱ـ لومړی قلمی نسخه دخوشحال په ژوند په ۱۰۹۹ ه کال په جانه‌کوړ کښی چه دآدم خیلو اپریدو په علاقه کښی یوځای دی لیکل شوې ده

۲ـ دوهمه قلمی نسخه هم ډیره پخوانی ده خو تاریخ یې

نه معلومیږی .

۳ـ دریمه قلمی نسخه هم زړه او پخوانۍ ده . خو تاریخ او دسر او آخر پاڼې نه لری .

دغه دریو اړه قلمي نسخې په پاخه نستعلیق خط دختکو دکورنـۍ په خاص لیك دو دلیگل شوی دی . په دغه لیك دود کښی دپښتو دهـر درونډ توری دپاسه وړوکـې همـزه(ء) لیکل کیږی .

## د خوشحال دکلیاتو چاپی نسخې دادي :

۱ـ لومړۍ چاپی نسخه په ۱۳۱٦ش کال دښاغلی عبدالحي حبیبی له خوا په کندهار کښی چاپ شوی‌ده .

۲ـ بله چاپي نسخه دښاغلي دوست محمد‌کامـل لـه خوا پـــه ۱۹۵۲ع کال په پېښور کښي چاپ شوی‌ده .

۳ـ دریمه چاپی نسخه دښاغلي سید رسول رسالـه خواپـــــه ۱۹٦٤ع کال په پېښور کښی چاپ شوې ده .

ددغو ټولو نسخو سره دخوشحال درباعیاتو دمقابلې کار که څه هم درې میاشتې وخت ونیو ، مگر دقلمی نسخو دلیك دود دسختیا پـــه وجه ډېر ځایونه پکښې ناسم پاتې شوی وو په دغه وجه له قلمی نسخـو سره دبیا مقابلې ضرورت پیدا شو او ماپه خپله دمحمد اسمعیل سرېـن شاه ولی صافی ، شاه دوله او بینا په مرسته په دغه کار لاس پورې کړ . دمقابلې په منځ کښی داخبره څرگنده شوه چه ډېر ځایونه پکښې نـاسـم پاتی شوی دی .

که څه هم دقلمې نسخو دمقابلې کار یو درونډ کار دی خوموږ دلوی خدای په مرسته په دوو هفتو کښی دغه گـران‌کار سرته ورساوه، (۱٦۰٤)ٍ رباعي‌گانی مو ولوستلی او ناسمی رباعي‌گانی مو په ډېر غور سره مقابله او دقلمی نسخو له مخه سمې کړې .

په دې مقابله کښې دپښتو ټولـنې له دوهمـی او دریمی قلمـی نسخې څخه‌زیاته گټه اخستل شوې‌ده او اولی قلمي نسخی‌ته د ضرورت په وخت کښی رجوع شوې ده . ددریو اړو قلمـی نسخو سم او صحیـح متنونه په لمن لیك (پاورقی)کښې راوړل شوی‌دی او ځینی نا اشنا او مهم

لغتونه هم پکښې حل شوي‌دي .
اوس غواړو چه دچاپي نسخې دغلطو او د قلمي نسخو له مخه‌دوسا شو و څلور ين و څو مثالو نه راوړو.

تروزې په مکر مزرې پـــه زور ده
غازي په توره د شپه په لـــور زده

په دې بيت کښې (دشپه)کلمه په دواړو چاپي نسخو کښې غلـطه ده چه په قلمي نسخو کښې(وښپه) راغلي ده . وښپه هغه ځاته وايي چه دوښو او گياراوړلو کسب کاو کوي لکه خسبه ، لر گبه او نور .

مغل کمزور ی غليم په رحم دې
کله يې زړه دې چه پښتو ن‌ښه‌شي

په اول سر کښې د (په‌رحم) په ځاى په قلمي نسخو کښې(بې‌رحم) راغلې دي چه معنى يې په‌دغه‌صورت کښې سمه راځي .
چينه جيحون نه ده ، غونډې به غر نه شي
شمع‌قمر نه ده سهـــا بـــه لمر نه شي

په دغه بيت کښې د (چينه) کلمه غلطه ده او په قلمي‌نسخو کښې (جيندی) دى چه په اشنغر کښــې ديو سيند نوم دى .
دغسې نور هم دچاپي نسخو ډير غلط مثالونه موجود دي چه د قلمي نسخو له مخه سم شوي دي خومونږ دلنډيز دپاره دغه درې مثالـو نــه وښودل .

دخوشحال رباعيات په چا پي نسخو کښې (١٦٠٤) ته رسيږي .
مگر مونږ داولې قلمي نسخې له‌مخه (٧٠) نورې څلوريزې هم په‌آخر کښې ور زياتې کړې : چه دغه څلور يزې په نورو قلمي نسخو کښې‌هم‌نشته‌او په چاپي نسخو کښې‌هم‌نه‌دي‌راغلي.
په دې حساب دټولو رباعيا تو شمير (١٦٧٤) ته رسيږي .

نو دادی پښتو ټولنه په ډیر ویاړ دغه وړوکی ادبی سوغات دخوشحال د (۲۹۰) تلین دنمانځنی په یاد د پښتو او پښتونولی ربښتینو میناتو ته په ډیره مینه وړاندې کوی او له پاك خدای نه دستر وا کمن اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په نیکمرغه دوره کښې د پښتو ژبی او پښتو ادب زیات پرمخ تګ اولوړتیا غواړی !!

زه په آخر کښې له ښاغلی معتمد شینوا ری او ښاغلی محمد شیرین «سنګری» خوږیانی څخه هم تشکر کوم چه ددې کتاب په تصحیح او اهتمام کښې یې ډیر زیار ویستلی دی .

پوهاند «رشتین» د پښتوټولنې مشر

زمری ـ ۱۳٤۹ ش








# KHUSHAL'S

# RUBAIIAT

## PASHTO

## ACADEMY

1970

Government Printing Press

دولتی مطبعه